دقرآن او حديث په رڼاکي
دعمرې مسائل
(بشپړ او مدلل)
ليکوال: مولانا محمد رفعت قاسمي
د ديوبند د دار العلوم مدرس
ژباړن: عبدالله ګل "ريان"
مکتبه رشيديه

د قرآن او حديث په رڼاکې

# د عمرې مسائل

(بشپړ او مدلل)

کوال : مولانامحمد رفعت قاسمي
د ديوبند د دارالعلوم مدرس

ارن: عبدالله گل "ريان"

خپرندوی : رشيديه کتابخانه، کوټه

**کتاب بنود:**

د کتاب نوم :دعمرې مسئلې

لیکوال :مولانا محمدرفعت قاسمي

ژباړن :عبدالله ګل "ریان"

کمپوز:سواد فرهنګي ټولنه

کمپوزر :بشیراحمد "ریان"

تصحیح کوونکی :مولوي سفرمحمد "عابد"

دچاپ کال : ۱۴۳۱ھ ق (۱۳۸۹المریز)

خپرندوی :رشیدیه کتابخانه، کوټه


## فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

## انتساب

زه مي خپله داپلټنه (دعمري مکمل او مدلل مسائل) خپل مهربان درانه استاذ محترم روزونکي او محسن، امام التفسير، فخر المحدثين حضرت مولانا سيد، انظرشاه مسعودي قدس سره، دديوبند شيخ الحديث او صدر المدرسين، دالامام محمد انورشاه کشميري (رح) دجامعي باني ته په انتساب نيکمرغه کوم.

نوموړی په کال ۱۳۴۷ هـ ق، دشعبان المعظم دمياشتې په ۱۴ نيټه (۲۶ جنوري ۱۹۲۹م) زيږيدلی او د ۱۴۲۹ هـ ق کال دربيع الثاني په ۱۹ نيټه (۲۶ اپريل ۲۰۰۸ م) وفات شوی دی.

له عمره کوونکو څخه هغه ته دثواب او ددرجو دلوړوالي ددعا هيله ده.

آسمان دي ستا په لحد شبنم پاشي
نوي تږو کيدلي بوټيۀ دي دا کورساتي

محمد رفعت قاسمي غفرله
يو له شاګردانو څخه دهمدې ستر محدث

## دليكوال عرض

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم!

ما دخپل ترتيب کړي کتاب (دحج مکمل او مدلل مسائل) له لړۍ ډيرو مسائلو سره، دعمري کولو مسائل بيل ترتيب کړل. ځکه عمره کوونکي کسان، په ټول کال کې دعمري کولو لپاره ځي، تر څو هغوی په اساني سره عمره وکړي. په دې کې دعمري مسائل، عمره څه شي ده؟ دعمري شرايط، فرائض او واجبات، په رمضان المبارک کې عمره کول، دحج په مياشتو کې عمره کول، دعمري لپاره مکروه ورځې، دعمري لپاره احرام له کوم ځای څخه تړل کيږي؟ دعمري کولو آسانه طريقه. دمړو او ژوندو لپاره عمره کول، په عمره کې دوداع طواف او نور عام فهمه مسائل يو ځای راغلي دي. الله تعالی دې قبول کړي. آمين

رَبَّنَا تَقَبَّلْمِنَا اِنَّکَ اَنْتَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ

محمدرفعت قاسمي

دديوبند ددارالعلوم خادم

(يو،پي انډيا)

۱۵ذي الحجه ۱۴۲۹هـ (۱۴دسمبر ۲۰۰۸ع)



ددارالعلوم دفتاوی مرتب او ددیوبند ددارالعلوم دمفتي حضرت مولانا مفتي ظفير الدين صاحب

## تقريظ

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم :

دديوبند ددارالعلوم استاذ، مولانا قاري محمد رفعت قاسمي صاحب مدظله، له څه وخته را په دې خوا، داوسنۍ زمانې ضروریاتو ته په پام سره، ديني مسائل په لنډه توګه په بيل، بيل کتابونو کې راټول او خپروي. دهيواد دننه او بهر په خاص او عام خلکو کې خورا ډير منل شوي دي. (ماشاءالله)

دامهال دهمدې لړۍ نولسم کتاب (دعمرې بشپړ او مدلل مسائل) له ماسره دی. دياد شوي مولانا دنورو کتابونو په څير، دا کتاب هم په ډير زيار سره ترتيب شوی دی. دعمرې دټولو ضروري مسائلو د رايو ځای کولو هڅه پکې شوې ده. له مختلفو مستندو فتاواو څخه يې له حوالو سره مسائل راغونډ کړي دي. الله تعالی ورسره مرسته هم کړې ده. هغه مسائل چې عمره کوونکو ته ضروري دي نژدې ټول يې په دې کتاب کې په يوه نه يوه عنوان کې راوړي دي. دعمره کوونکو لپاره يې ډيرې اسانتياوې پيدا کړي دي.

عمره کوونکو ته زما مشوره داده چې تر عمره کولو وړاندې، دا کتاب په غور سره وګوري. له ځان سره دا کتاب وساتي تر څو له سنت سره سم عمره وکړي. زما دعاده چې کريم خدای دې دمولانا همدا ستر خدمت قبول کړي او ورته دآخرت توښه دې وګرځوي. (آمين)

ددعا په هيله!

محمد ظفير الدين، دديوبند ددارالعلوم مفتي

(شعبان المعظم ۱۴۲۹هـق)

ددیوبند ددارالعلوم دمفتي،

مولانا مفتي محمود حسن بلندشهري

## تقريظ

الحمدلله الذي جعل بيته مثابة للناس وامنا . نحمده كما ينبغى لجلال وجهه الكريم وسلطانه العظيم .والصلوة والسلام على سيدنا محمد الذي انزل عليه المناسک والقرآن المبين وعلى اله وصحبه الذين قاموا بالدين القويم ومن اتبعهم باحسان الى يوم الدين .

څه موده وړاندې، مولانا قاري محمد رفعت صاحب مدظله دحج او عمرې مسائل راغونډ کړل (يو مدلل او مفصل کتاب ترې جوړ او چاپ شو) هغه الحمدلله ډير مقبول وو. په هغه کتاب کې چې دعمرې په اړه کوم احکام وو، په هغو کې له زياتوالي سره يې ترتيب کړی او هم يې نومورې يې بيل خپروي، ترڅو عمره کوونکو ته اساني ترلاسه شي. دتيرپه څير مې ددې مسوده هم بشپړه وکتله، الله تعالى دې ليکوال ته په دواړو جهانونو کې نيکه بدله او ديني خدمت توفيق ورکړي. الله تعالى دې دا کتاب هم ورته دمقبوليت په شرف مشرف کړي .

اين دعا از من واز جمله جهان آمين باد . فقط

احقر محمود حسن بلندشهري، غفرالله له ولوالديه واحسن اليهما واليه .

ددیوبند ددارالعلوم دتدريس او افتاء خادم .

قبيل صلوة المغرب

(۱۰ ذی الحجه ۱۴۲۹ يوم الثلثاء)



ددیوبند ددرالعلوم دمفتي دنائب، مولانا مفتي زين الاسلام قاسمي صاحب:

## تقريظ

حامداً ومصلياً ومسلماً!

دقدرمن، درانه ملګری، قاري محمد رفعت قاسمي صاحب دام فيضه، وعم نفعه، کتاب (دحج او عمرې مسائل) چاپ او خلکو ته ورسيد. حج او عمرې ته دتلونکو لپاره په ورپېښيدونکو مسائلو کې ښه لارښوونه ورڅخه ترلاسه کيدله . په هغه کتاب کې دحج او عمرې مسائل يوځای راغلي وو. خو دا اړتيا محسوس شوه چې دعمرې په اړه مسائل بيل چاپ شي . ځکه چې دعمره کوونکو شميره ترحج کوونکو اوړي .(اللهم بارک فيه) له همدې امله دهغې مربوط مسائل بيل چاپول ډير اړين ؤ، ترڅو يوازې دعمرې دمسائلو او احکامو په لوستلو، پوهيدلو او يادولو کې سهولت وي. همداسې په سفر کې د وړوکي کتاب لرل هم اسانه وي. الله تعالى دې نومورې مولانا ته دخير بدله ورکړي. دده دنورو کتابونو په څير يې په دې ټولګه (دعمرې مسائل) کې هم دفقه او فتاوو له کتابونو څخه دعمرې په اړه هرډول جزئيات سره يو ځای کړي دي. ځينې ځايونه مولانا څوګټورې توضيحي ليکنې په خپل قلم ليکلي دي .

ما دا ټولګه له پيله ترپايه ولوستله، هره مسئله په ډاډمنه حواله ښکلې شوې ده. له همدې امله يې په استناد او اعتماد کې کومه شبه نشته او په پوره ډاډ سره دا خبره کيدلای شي چې عمرې ته تلونکي خلک دې دا کتاب څو، څو ځله ولولي. له ځان سره دې ولري . انشاءالله دسفر په دوران کې به ورته ورڅخه بشپړه لارښوونه او مرسته پيدا شي. الله تعالى دې دا ټولګه هم ګټوره او مقبوله وګرځوي.

ددرويشانو دپښو خاوري

زين الاسلام قاسمي

۱۴۲۹/۱۰/۲۵ هـ ق

بسم الله الرحمن الرحيم

## تر سفر وړاندې ضروري خبري

مسئله : دعمرې سفر په هر اعتبار خورا مبارک سفر دی. په دې مبارک سفر کې، ډيري ستري، ستري وعدې شوي دي.انسان داسي مبارکو او سپيڅلو ځايونو ته ځي چي هلته ددعاوو دقبول وعدې شوې دي. نو تر دې سفر وړاندې له خپلوانو او دوستانو سره ليدل او له يوه بل څخه ددعاوو غوښتل جائز دي. په تيره بيا له هغو کسانو سره چي خبري ورسره بندي وي ، ترمنځ يي ستونزې او کدورت راغلى وي، هغوى ته ورتلل، ور څخه بخښنه غوښتل او دهغوى زړونه خوشحالول خورا ضروري خبره ده. په دې توګه که دچا حق پاته وي ، په چا تيرى شوى وي، پور ور څخه اخستل شوى وي او يا ورکړل شوى نه وي. دحج (او عمري) تر سفر وړاندي هغه حق ادا کول، يا يي کوم انتظام کول يا ور څخه وخت اخستل او ځان ډاډمن کول ضروري ده. تر څو له دې مبارک سفر څخه پوره برکتونه ترلاسه شي. څومره چي په پاک زړه ، د بندګانو دحق په اداء کولو سره ،له ممنوعاتو او مکروهاتو په ځان ساتلو او دټولو ادابو په مراعات کولو سره حرمينو شريفينو ته لاړ شي ،هغومره به انشاء الله ورته ډير برکتونه حاصل شي.

دا دحج په فضيلتونو کې ده چي تر هر څه وړاندې له ګناهونو څخه توبه وکړي، دچا مال يي په تيري اخستى وي، هغه ورته وزکړي ،په چا چي څه ډول تيرى شوى وي، له هغه



څخه بخښنه وغواړي، کوم پور چي يي په ذمه پاته وي ، هغه اداء کړي يا دور کولو کوم انتظام وکړي.

علماء ليکي :که په چا باندې ظلم در څخه شوى وي يا دي په ذمه باندې کوم حق وي ، هغه يو پور غوښتونکي دی ، هغه درته وايي ته چيرته ځي؟ تا په داسي حال کې دکائناتو دپاچا په دربارکې دحاضريدلو اراده کړي ده چي، ته دهغه مجرم يي. دهغه حکم دي ضايع کړى دی ، له حکم څخه دګرځيدلو په حال کې هلته حاضريږي. نه ، وويريږه چي هغه به تا رد او بيرته راشاته کړي. که ته دمقبوليت هيله لري ، له دې ظلم څخه توبه وباسه او بيا حاضر شه. امر منونکى شه او بيا ورسه، کنه ستا داسفر به له پيل څخه ستونزمن وي او دپاى په اعتبار به دمردود کيدلو وړ وي.

همداسي دتللو په مهال، دخپلي سيمي له ملګرو ، عزيزانو او دوستانو سره ليدل کتل او ورسره خداى په اماني کول . له هغوى څخه دځان په هکله ددعا غوښته ، دخير سبب ګرځي.

(فتاوى رحيميه ج ۱۰ ص ۱۸۰)

مسئله : دحج په سفر تر تللو وړاندې، خپل نيت دخداى تعالى او دآخرت دثواب لپاره خالص کړئ.

مسئله :دچا که درباندې کوم مالي حق پاته وي او هغه مړ شوى وي، هغه يي وارثانو ته ورکړه .يا يي له هغوى څخه بخښنه وغواړه. که دحق څښتنان ډير وي، دهغوى ځاى ځايګى معلوم نه وي ، نو هغومره شي چي په تا يي پاته وي

دهغوی له لوري صدقه کړه. که مو په لاس یا ژبه ورته ضرر رسولی وي، ډیرې دمغفرت دعاوي ورته کوئ. انشاءالله دهغوی دحق دوبال څخه به خلاص شئ.

مسئله: که تر بلوغ وروسته قضا شوي لمنځونه، روژې او زکات دومره وي چي دحج او عمرې تر سفر وړاندي یې پوره کولای نشوای، یا دخلکو حقوق دومره ډیر وي چي دهغو ټولو بخښنه غوښتل یا اداء کول، داوخت کیدلای نشي. نو دومره وکړئ چي دهغوی دادا کولو قصد له همدې شیبې څخه وکړئ. څومره چي یې ادا کولای شئ، هغه اداء کړئ او کوم چي پاته کیږي، دهغوی لپاره یو وصیت ولیکئ، خپل یو دوست یا خپلوان دځان وصي کړئ چي که تاسو په ژوند اداء نه کړای شوای، وروسته به یې هغه اداء کړي.

(احکام حج، مفتي محمد شفیع، ص ۲۳، کتاب الفقه ج۱ ص ۱۰۹۴)

## دعمرې فضائل

حج داسلام یو ستر رکن دی، داسلام دتکمیل اعلان په حجة الوداع کې وشو او په حج سره داسلام ارکان تکمیل شول. په پاکو حدیثونو کې دحج او عمرې فضائل ډیر زیات بیان شوي دي. په یوه حدیث کې راځي:

{چا چي دالله تعالی درضاء لپاره حج وکړ په هغه کې نه فحش خبره وکړي او نه یې کې نافرماني وکړي، هغه داسي (له ګناهونو څخه) پاکیږي لکه دپیدا ښت په ورځ چي پاک وي.}



په یوه بل حدیث کې دي: {له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وشوه، تر ټولو افضل عمل کوم یو دی؟ ویې ویل: په الله او دهغه په رسول ایمان راوړل. عرض یې وکړ: بیا کوم یو؟ ویې ویل: دالله جل جلاله په لاره کې جهاد کول. عرض یې وکړ بیا؟ ویې ویل: مبرور حج. تر یوې عمرې وروسته بله عمره دهغوی په منځ کې دګناهونو کفاره ده او دمبرور حج بدل پرته له جنت څخه بل څه کیدلای نشي.}

په یوه بل حدیث کې راځي چي حج سړی له ګناه څخه داسي پاکوي لکه داوربټۍ چي سره او سپین زر له خیرو څخه پاکوي.

ددې مبارک سفر په دوران کې، له ګناهونو څخه پرهیز وکړئ او په ټول عمر کې له ګناه څخه دځان ساتلو هوډ وکړئ او په دې هکله، له الله تعالی څخه ځانګړې دعاوې وغواړئ. دا خبره په یاد ولرئ چي دقبول شوي حج نښه داده چي تر حج وروسته، دانسان په ژوند کې بدلون راځي. څوک که تر حج کولو وروسته فرائض پریږدي او دناوړو کارونو ارتکاب کوي، دهغه حج قبول شوی نه دی.

تاسو ته ښه داده چي ډیر وخت په حرم کې تیر کړئ، له ډیرې اړتیا پرته دبازارونو له ګرځیدلو څخه ډډه کول مناسب دي. ددنیا سازوسامان، تاسو ته ګران یا ارزانه، ښه یا بد په خپل هیواد کې هم موندل کیدلای شي. خو هغه نیک مرغي چي په حرم کې پیدا کیږي، هغه دنړۍ په کوم بل ځای کې نه موندل

داچې په حج کې د نړۍ له کوټ، کوټ څخه د مختلفو ملکونو خلک سره یوځای کیږي، له دې امله که چا څه عمل کاوو، دهغه په لیدلو سره په هغه پیل مه کوئ. بلکې پلټنه کوئ چې، ایا داعمل له خپل حنفي مذهب سره سم هم صحیح دی او که نه دی؟ مثلاً، دلته یوه مسئله یادوو: دسهار تر لمانځه وروسته یا تراشراق پورې او دمازدیګر تر لمانځه وروسته، دلمر تر ډوبیدلو، دطواف دوه رکعتونه اداء کول اجازه نشته. همداسې په مکروه وختونو کې یې هم اجازه نشته. خو ډیر کسان نورو ته ګوري او کوي یې. لنډه داچې یوازې خلکو ته په کتلو کوم کار مه کوئ. له علماوو څخه دمسائلو پوښتنه کوئ. (آپ کې مسائل اور ان کا حل ج ۴ – معارف القرآن جلد ۱، معارف الحدیث ج ۴ کتاب الحج، الترغیب والترهیب ومظاهر حق جدید، علم الفقه ج ۵ کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ج ۱ کتاب الحج وفضائل.)

رسول الله صلی الله علیه وسلم وائي: {حج او عمره یوځای وکړئ، ځکه دا دواړه، لاس تنګې او ګناوې داسې لرې کوي لکه بټۍ چې له اوسپنې، سرو او سپینو زرو څخه خیرې پاکوي.}

له دې مبارک حدیث څخه داڅرګندیږي چې، په حج او عمره یوازې ګناه نه پاکیږي، بلکې دهغوی په برکت له انسان څخه بیوزلي او لوږه هم لرې کیږي او په حج او عمره سره سړی له ښکاره او پټو، دنیایي او اخروي برخو برخمن کیږي. خو



داخلاص په ملګرتیا.

له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت شوی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: په رمضان کې عمره له یوه حج سره برابره ده. په یوه روایت کې راځي چې له هغه حج سره برابره ده چې له ما سره یې کړی وي.

په حدیث شریف کې داهم وائي: حج او عمره کوونکي دالله تعالی میلمانه دي، که هغه له الله تعالی څخه هره دعا وغواړي، هغه منله کیږي او که دچا خطاوې وبخښې، الله تعالی دهغه خطاوې بخښي. (معلم الحجاج ص ۲۰۸، معارف القرآن، معارف الحدیث، الترغیب والترهیب ومظاهر حق جدید)

## په رمضان المبارک کې عمره کول

مسئله: دحج له ورځو (دذی الحجې له نهمې تر دیارلسمې) پرته چې عمره پکښې ناجائزه او منع ده، نور په ټول کال کې، که توان وي عمره کیدلای شي. خو په رمضان المبارک کې، داعمالو ثواب او یا برابره ډیروي او په بخاري شریف کې یو مبارک حدیث دی چې، رسول الله صلی الله علیه وسلم وایي: {په رمضان المبارک کې عمره له پوره حج سره برابره ده.} (بخاري شریف ج ۱ ص ۲۳۹، مسلم شریف ج ۱ ص ۴۰۹)

مسئله: څوک چې دتمتع حج کوي، هغه ته تر حج وړاندې دشوال له پیل، ذي قعده او دذي الحجې په لومړنۍ عشره کې بیا، بیا عمره کول، پرته له کراهت څخه جائز ده. یعني تر یوې عمرې وروسته تر حج وړاندې بله عمره کولای شي.

(معلم الحجاج ص ۲۲۱ ورحمة الله الواسعه ج ۴ ص ۱۸۳)

مسئله: دځينې علماوو په نظر، که متمتع دعمرې له ارکانو فارغ شي، که بيا عمره وکړي نو تمتع يې باطليږي اوکله چې دربيمه عمره وکړي نو په هغې سره تمتع کيدلای شي. يعني څومره عمرې چې کوي په اخري باندې يې تمتع صحيح کيږي. (فتاوای محموديه ج ۱۲ ص ۱۸۳)

مسئله: دمکې مکرمې هستوګنو ته دحج له ورځو پرته نور په ټول کال کې عمره جوازلري، پرته له کراهت څخه ورته جوازلري. (غنية المناسک ص ۱۵۵)

## عمره څه شی دی؟

دعمرې لغوي معنی زيارت دی. لکه څوک چې دچا زيارت وکړي وايي "اعمره" يعني ما دهغه زيارت وکړ. دشرع په اصطلاح کې، له هغې څخه مقصد په ځانګړې طريقه سره دکعبې مبارکې زيارت کول، يعني له ميقات يا حل څخه احرام تړل، دبيت الله طواف او سعی کول دي.

مسئله: داحنافو په نزد، دقدرت په صورت کې، په عمر کې يوځل عمره کول مؤکد سنت ده، فرض نه دی. ځکه درسول الله صلی الله عليه وسلم مبارکه لارښوونه ده:

{الحج مکتوب والعمرة تطوع.}

[حج فرض دی او عمره تطوع (نفلي عبادت) ده.]

دالله تعالی لارښوونه: { وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ} تر پيل کولو وروسته دبشپړولو لپاره حکم دی. که هرعبادت هم پيل



شي نو بشپړول يې واجب دي، که څه هم هغه نفلي عبادت وي. په دې آيت شريف کښې دعمرې دفرضيت استدلال کيدلای نشي.

پاته شوه دحج دفرضيت خبره، هغه دالله تعالی له ارشاد څخه ثابت دی: { وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ} له دې سره نور دلائل هم شته چې دحج په بيان کې به وويل شول.

له ابورزين العقيلي څخه روايت دی چې، نوموړی درسول الله صلی الله عليه وسلم حضور ته راغی، ويې ويل: زما پلار سپين ږيری دی، نه حج کولای شي او نه هم عمره او نه هم دسفر کولو وړ دی. رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته لارښوونه وکړه:

"دپلار له لورې ته حج او عمره وکړه."

داحديث شريف بخاري، مسلم، ابوداود، نسائي او ابن ماجه روايت کړی دی، او ترمذي صحيح بللی دی.

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۱۲۳)

مسئله: په رمضان المبارک کې، په عمره کولو ډير تاکيد له دې کبله دی چې، له ابن عباس (رضی الله عنهما) څخه روايت دی: {عمرة في رمضان تعدل حجة}

(په رمضان المبارک کې عمره دحج برابره ده.)

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۱۲۷ – معلم الحجاج ص ۲۰۶، مظاهرحق ج ۳ ص ۲۶۲)

مسئله: که له عمرې څخه وروسته، حلال شي او دميقات تر حدودو بهر ووزي، نو دبيا راتګ په مهال احرام ضروري

دی. که د میقات تر حد بهر ونه وزي، بیا د احرام ضرورت
نشته.(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۲۲٦)

مسئله: دعمرې په احرام کې تر سعی کولو وروسته، قصر
یا حلق (ویښتان خرپیل یا کوچني کول) کیږي. (معلم الحجاج ص ۱۷۷)

مسئله: ډیري عمري کول مکروه نه دي، بلکې غوره دي،
ډیر طواف کول تر ډیرو عمرو غوره دی.(معلم الحجاج ص ۱۷۷)

مسئله: په عمره کې دعمرې تر طواف پوري تلبیه ویل
کیږي. (معلم الحجاج ص ۱۰۴)

## دعمرې او حج تر منځ څه توپیر دی؟

مسئله: دعمرې دسنت یا واجب کیدلو شرایط دحج په څیر
دي. داحرام احکام یي هم دحج داحرام په ډول دي. کوم شیان
چي هلته حرام، مکروه، سنت یا مباح دي، هغه دلته هم دي.
خو په دې شیانو کې دحج او عمرې ترمنځ توپیر شته، دحج
لپاره یو خاص وخت دی، عمره له پنځو ورځو (دذي الحجي له
نهم تر دیارلسم) پرته چي په کې تحریمي مکروه ده، نور په
ټول کال کې کیدلای شي.

حج فرض دی. عمره فرض نه ده. حج قضاء کیدلای شي
خو عمره فوت نلري. په حج کې دعرفات او مزدلفي وقوف، د
لمونځونو یوځای والی او خطبه شته. په عمره کې دا شیان
نشته. په حج کې دقدوم او وداع طوافونه دي. په عمره کې دا
دواړه نشته. که عمره فاسده شي یا دجنابت په حال کې طواف
پکې وشي، دپسه حلالول کافي دي. خو دحج لپاره دا کافي



نه دي. دعمرې لپاره میقات دټولو خلکو لپاره حل دی، خو
دحج لپاره داسي نه ده، د مکې مکرمي خلک دحج احرام په
حرم شریف کې تړي. خو داطراف اشخاص یا که څوک له بهر
څخه دعمرې په اراده راځي نو له خپل میقات څخه حرام تړي.
په عمره کې دطواف له پیل څخه تلبیه بندیږي، خو په حج کې
دوروستني جمرې دویشتلو په پیل پوري موقوفه شوي ده.
(معلم الحجاج ص ۲۰۴، مظاهر حق ۳ ص ۲۷۰)

مسئله: که داطراف شخص، دعمرې په اراده مکې
مکرمي ته راځي نو له خپل میقات څخه به دعمرې احرام تړي.

مسئله: دمکې مکرمي دهستوګنو لپاره دعمرې لپاره
داحرام تړلو میقات حل دی. دحل سیمي ته به ځي، چیري چي
غواړي احرام دې وتړي، خو غوره تنعیم (دعائشي (رضی الله عنها)
مسجد) دی یا دې تر هغه بهر له جعراني سره احرام وتړي.
(معلم الحجاج ص ۲۰۷)

## دعمرې مناسکو ته یوه کتنه

احرام – طواف له رمل او اضطباع سره – سعی او سر خرییل.

## دحج په میاشتو کې عمره کول

پوښتنه: یو څوک دحج په میاشتو کې لاړ، عمره یې وکړه
او دحج تر وخته هلته پاته شو. آیا دی په همدې دوران کې
نوري عمري کولای شي؟

جواب: دتمتع دحج کوونکي لپاره، دحج او عمرې تر منځ
عمره کول جائز دي. (آپ کي مسائل ج ۴ ص ۵۱)

مسئله :داطراف دهستوګنو لپاره، دحج په میاشتوکې تر یوې زیاتې عمرې جایز دي.دتمتع دحج کوونکو لپاره هم تر یوې عمرې وروسته تر حج وړاندې بله عمره کول جواز لري.

(فتاوی رحیمیه ج ٦ص ٢٩٧ آپ کې مسائل ج ۴ ص ٥٠)

## دعمرې لپاره مکروه ورځې

مسئله : دعرفې (ذي الحجې نهمه) له ورځې بیا تر دیارلسمې پورې، داپنځه ورځې دحج لپاره دي .په دې ورځو کې دعمرې اجازه نشته . له همدې امله په دې ورځو کې عمره کول تحریمي مکروه ده. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ٥٠)

## تر احرام تړلو وروسته که عمره ونکړای شي

پوښتنه :مادعمرې لپاره احرام وتاړه. خو دطبعیت دخرابې له امله مې عمره اداء نکړه او دعمرې له اداء کولو پرته مې احرام خلاص کړ، زما لپاره حکم څه دی؟

جواب :په تاباندې داحرام دخلاصولو له امله دم (داحرام په حدودوکې دیوه پسه ذبح کول) واجب دي او دعمرې قضاء هم لازمه ده. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ٥٠)

## ایا دحج په میاشتوکې دجدې هستوګن عمره کولای شي؟

پوښتنه : موږ په جده کې دکار لپاره هستوګنه لرو، ددې ځای دخلکو په وینا، موږ حل والایو. یعني تر حرم بهر د میقات دننه مقیم یو . دوی وایي: دحل خلک دحج په میاشتو کې عمره کولای نشي ،آیا داسمه ده؟

جواب :که مو همدا کال دحج اراده وي، بیا عمره کول



مکروه ده .خو که دحج اراده نه وي بیا مکروه نه ده.

مسئله :دمکې مکرمې هستوګن یا هغه چې ددوی حکم لري، یعني دمیقات دننه (یا په میقات کې) او هغه هستوګن چې دحج تر میاشتو (شوال ، ذي قعده او دذي الحجې لومړۍ لسیزه) وړاندې، دمکې هستوګن وي او هغه داسې چې اطرافي دحج تر میاشتو وړاندې حلال وي، په مکه کې هستوګن وي بیا وروباندې دحج میاشتې راغلې نو هغه ته دحج په میاشتو کې عمره کول مکروه دي. خو چې همدا کال حج کول غواړي او که همدا کال حج نکوي نو دوی ته عمره کول مکروه نه دي. که همدا کال دحج اراده لري او عمره وکړي، نو دم وروباندې جبري لازمیږي.

(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص د ٢٢٢ شامي ج ٢ ص٢٠٨ په حواله– زبدة المناسک ج ١ ص ٢٥٥ درمختار مع شامي ج٢ ص ٢٧٠)

## دحج په ورځو کې عمره کول

مسئله : عمره په ټول کال کې جائز ده . یوازې پنځه ورځې (ذي الحجه ١٠– ١٣) ورته احرام تړل تحریمي مکروه دي. که په دې ورځو کې ورته احرام ونه وشل شي، بلکې وړاندې لا احرام تړل شوي وي، بیا مکروه نه ده. مثلاً چا مخته لا احرام تړلي و ، راغی او حج یې ونکړ. که هغه په دې ورځو کې عمره وکړي ورته مکروه نه ده. خو دهغه لپاره مستحب داده چې تر دې پنځو ورځو وروسته دې عمره وکړه.

(فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ۴٠٥ –معلم الحجاج ص ٢٢٣)

مسئله: که چا په همدې پنځو ورځو کې، دعمرې لپاره
احرام وتاړه. داحرام تړلو له امله وباندې عمره واجبيږي. خو
داچي په دې ورځو کې داحرام تړل مکروه دي، له همدې امله
وباندې دعمرې پرېښودل واجب دي، ترڅو له ګناه څخه
ساتلی وي. دهمدې ورځو تر تيريدلو وروسته دې قضاء
راوړي او دم (وينه) وباندې واجبيږي. که يې عمره ترک نه
کړله او په همدې پنځو ورځو کې يې وکړه، عمره يې کيږي خو
دکراهت له امله وباندې دم اوړي او که يې په همدې ورځو
کې ورته احرام وتاړه خو عمره يې دتشريق تر ورځو وروسته
وکړه، عمره يې کيږي او دم هم وباندې نه اوړي. خو داسي
کول مکروه دي. ځکه په داسي صورت کې داحرام خلاصول
واجب دي. (معلم الحجاج ص ۲۰۶)

## دحج په مياشتو کې په عمره کوونکي باندې حج

پوښتنه: شوال، ذي قعده او ذي الحجة دحج مياشتې دي،
که په دې مياشتو کې څوک عمره وکړي، آيا ورته ضروري ده
چي حج هم وکړي؟

پوښتنه: که زه په شوال يا ذي قعده کې عمره وکړم او
رياض ته راشم (داحرام له حدودو ووزم) او بيا دحج په وخت
بيرته راشم نو هغه مهال به دمتمتع دحج نيت کيږي او که
دمفرد حج. دتمتع دحج لپاره به بيا عمره کيږي او که هغه
لومړنۍ کفايت کوي؟
جواب: اطرافي سړی (هغه چي له ميقات څخه بهر اوسيږي



لکه هندي، پاکستاني، مصري، افغانستاني، ايراني او
نور) که دحج په مياشتو کې عمره وکړي، خپل هيواد ته لاړ
شي. دحج يا عمرې لپاره ورته دبيا راتلو ضرورت نشته. که
دی همدا کال حج کوي هم دغسې د لومړنۍ عمرې له کبله
متمتع کيدلای نشي او نه وباندې دتمتع دم لازميږي. که
همداسي شخص تمتع حج کول غواړي بيا به دعمرې احرام
تړي او راځي به. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۶۷)

## تر عمره وروسته څرنګه حج کيږي؟

سوال: ما دشوال په مياشت کې يوه عمره وکړه، بيا مې دحج
اراده وکړه، دهغه نيت به څرنګه کيږي او داحج به کوم ډول وي؟
جواب: نيت خو داسي دی لکه دعمرې لپاره بيل او دحج
لپاره بيل چي کيږي. مسائل يې هم هغه دي. خو داحج تمتع
کيږي. دذي الحجې په لسمه تر سرخرييلو وړاندې قرباني
لازميږي چي هغې ته دتمتع دم وايي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۶۶)
مسئله: دتمتع حج په کوونکي باندې دقدوم طواف واجب
نه دی، تر عمرې وروسته چي څومره طوافونه يې زړه غواړي
هغومره نفلي طوافونه کولای شي. (معلم الحجاج ص ۲۲۱)

## ايا عمره دحج بدل ده؟

مسئله: اروپا او امريکا ته دتلونکو، راتلونکو، که د
عمرې نيک مرغي په برخه کيږي، نو عمره دې کوي، خو عمره
دحج بدل نه ده. په چا که حج فرض وي، هغه ته حج کول ضرور
دی، يوازې د عمرې په اداء کولو دحج فرض نه اداء کيږي.

## دکار لپاره سفر او عمره؟

پوښتنه: موږ دکار او خدمت په لړکې، دسعودي عرب جدې ته ځو او بیا یو زر میله لرې کار کوو، نو موږ په پیل کې عمره وکړو او که وروسته؟

جواب: دا چې سفر مو دعمرې لپاره نه دی، بلکې دکار لپاره دی. نوکله چې وغواړئ عمره وکړئ.

ستاسو لپاره لومړی عمره کول ضروري نه ده، په تیره بیا هغه مهال چې تاسو ته دمکې مکرمې دتللو لپاره اجازه ترلاسه کول هم ستونزمن وي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۵۱)

## دعمرې ثواب څرنګه دمړو لپاره کیدلای شي؟

پوښتنه: زه دخپلې مرحومې مورله لورې عمره کول غواړم، عمره له خپل لوري وکړم ثواب یې ورته وبخښم او که عمره دهغې له لوري وکړم؟

ځواب: دواړه صورتونه یې سم دی. تاسو ته اسانه داسي ده چې له خپله لوري عمره وکړي او ثواب یې ورته وبخښئ. که دهغې له لوري عمره کیږي بیا د احرام ترلو په مهال داسي نیت کیږي: زه دخپلې مور لپاره دعمرې دکولو احرام ترم، یا الله! دا عمره راته اسانه کړي او زما دمرحومې مور له لوري یې قبوله کړي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۵۱)

مسئله: که څوک دعمرې دکولو په مهال په زړه کې داسي نیت وکړي چې زما ددې عمرې ثواب دې فلانې خپلوان یا



دوست (ژوندي . مړه) ته دې ورسیږي، هغه ته رسیږي لکه څرنګه چې دنورو نیکو کارونو دثواب بخښلو نیت کیږي د عمرې دا هم هغسې کیدلای شي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۵۱)

مسئله: عمره دژوندیو له لوري هم کیدلای سي، دچا له لوري چې کیږي په هغه باندې حج تر هغه نه فرضیږي، څو چې قدرت ونلري. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۳۶)

مسئله: نفلي عمره دلمانځه په څیر ده. تریوه زیات کسان په ثواب کې شاملولای شي. خو که دڅو کسانو له خوا له تا څخه دعمرې کولو غوښتنه وشي چې زما له لوري عمره وکړه نو هره یوه ته به بیله، بیله عمره کیږي. (فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۲۲۶)

## دعمرې شرائط

مسئله: دعمرې لپاره هغه شرائط دي کوم چې دحج لپاره دي. دعمرې لپاره یوازې یو رکن دی. (هغه دطواف دګرځیدلو ډیر شمیر) یعني څلور ځله ګرځیدل دي. احرام تړل رکن نه دی، بلکې هغه شرط دی. دصفا او مروه ترمنځ سعي کول واجب دي. دویښتانو کمول یا خرییل هم دغسې دی یعني واجب دی خو رکن نه دی. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۱۲۳)

مسئله: عمره یوازې درې کارونه دي:

۱- دا چې له میقات یا تر هغه مخته احرام وتړل شي.

۲- مکې ته په رسیدلو دکعبې طواف کول.

۳- دصفا او مروه ترمنځ سعی کول او وریښي سر کمول یا خرییل او د احرام خلاصول.

## دعمرې فرائض او واجبات

مسئله :په عمره کې دوه شيان فرض دي : يو احرام او بل طواف. داحرام لپاره نيت او تلبيه دواړه فرض دي. دطواف لپاره نيت فرض دی. دصفا او مروه ترمنځ سعی كول، سر كمول يا ويښتان خرييل واجب دي. (معلم الحجاج ص ۲۰۵)

## دعمرې لپاره احرام له كوم ځايه تړل کيږي؟

پوښتنه : ۱– که څوک دحج په اراده لاړ نسي. بلکې يوازې دعمرې اراده وکړي او که سړي اطرافي هم وي د حرم له حدودو څخه بهر مثلاً په جده کې احرام تړلای شي کنه ؟

۲– په جده کې تريو دوو ورځو هستوګني وروسته، که دعمرې اراده وکړي هغه اهل حل بلل کيږي؟

ځواب : څوک چي له بهر (حل) څخه مکې مکرمي ته د تللو اراده وکړي، هغه ته له ميقات څخه پرته له احرامه تيريدل جائز نه دی. بلکې دحج يا عمري احرام تړل ورباندي لازم دي. که له احرام څخه پرته تير شي، دميقات لور ته دي بيرته راګرځي. له ميقات څخه داحرام تړل ضروري دي که يي ونه تړي نو دم ورباندي اوړي.

۲– څوک چي دمکې مکرمې په قصد له کوره ووزې، په جده کې په يو دوو ورځو پاته کيدلو سره دحل په اهل کې نه شميرل کيږي. خو که دچا اراده جدې ته تلل وي، هلته ورسيږي او بيا دمکې مکرمې دتللو قصد وکړي، نو په هغه باندې داهل حل اطلاق کيدلای شي. په دې موضوع



دپوهيدلو لپاره داڅو اصطلاحات په ياد ولرئ :

۱– ميقات : دمکې مکرمې په اطراف کې څو ځايونه معلوم شوي دي، له بهر څخه که څوک مکې مکرمې ته ورځي له هغه ځايه به احرام تړي، پرته له احرام څخه يي له هغه ځايه تيريدل منع دي.

۲– افاقي (اطرافي) :هغه شخص چي له ميقات څخه بهر اوسيږي.

۳– حرم :دمکې مکرمې حدود، چيرې چي ښکار کول، وني غوڅول او نورڅه منع دی.

۴– حل : تر حرم بهر او دميقات دننه سيمه حل بلله کيږي.

(فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۲۱۸، آپ کې مسائل ج ۴ ص ۹۲)

مسئله : کوم خلک چي په ميقات کې دننه هستوګنه لري، هغوی دحج يا عمري احرام تر حرم بهر هرچيرې چي وغواړي تړلای شي. دحل ټوله سيمه دهغوی په حق کې ميقات دی.

(فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۲۲۳)

## له طائف څخه پرته له احرامه عمره کول

پوښتنه :کوم کسان چي په جده او طائف کي ملازمت لري، که هغوی دعمري په نیت کعبې شریفي ته ځي، له میقات څخ[ه] به احرام تړي. دلته دهستوګنو خلکو چي پرته له احرام څخ[ه] طواف وکړي څه حکم لري؟

جواب :ستاسو سوال خورا مهم دی .په دې هکله څ[و] مسئلي په ښه توګه په یاد ولرئ :

۱– دمکې شریفي څلورو لورو ته څه سیمه حرم بلله کیږي، هلته ښکار کول او ونې غوڅول منع دي. ترحرم وړاندې په کمه زیاته فاصله کې څه ځایونه معلوم کړل شوي دي چي هغوی میقات بولي. دلته حاجیان احرام تړي.

۲– کوم کسان چي دحرم په سیمه کې هستوګنه لري یا دمیقات دننه اوسیږي، هغوی چي کله هم وغواړي مکې مکرمې ته له احرام څخه پرته تلای شي. خو کوم کسان چي له میقات څخه بهر راځي. په هغوی باندې په میقات کې دحج یا عمرې احرام تړل لازم دي. ګواکې په داسي سړي باندي حج یا عمره لازمیږي، که څه هم هغه شخص دحج یا عمرې په نیت مکې مکرمې ته نه ورځي ،بلکې کوم ضروري کار ته ځي یا یوازې په حرم کې دجمعي لمونځ کوي یا یوازې دطواف لپاره ځي.

لنډه دا چې که دهر مقصد لپاره مکې مکرمې ته ځي هغه له میقات څخه له احرامه پرته تللای نشي.



۳– که څوک له میقات څخه پرته له احرامه تیرشي، په هغه لازمه ده چي ترڅو مکې مکرمې ته ترننوتلو وړاندي بیرته میقات ته راوګرځي او هلته احرام وتړي.

۴– که هغه بیرته نه راوګرځي دم ورباندي واجبیږي.

۵– که څوک له میقات څخه پرته له احرام تړلو مکې مکرمې ته لاړ شي، په هغه باندې حج یا عمره لازمیږي ،که هر څومره ځلي له احرامه پرته تر میقات تیر شي هغومره واري حج یا عمره ورباندي لازمیږي.

له دې مسائلو څخه معلومیږي چي کوم خلک له میقات څخه بهر هستوګنه لري ، یوازې دطواف لپاره مکې مکرمې ته تلای نشي، بلکې هغوی ته ضروري ده چي له میقات څخه دعمرې احرام وتړي او دا هم څرګنده شوه چي که هر څومره واري پرته له احرام څخه ورشي، هغومره دم او هغومره عمري ورباندي واجب دي.

۶– جده له میقات څخه وتلي نه ده. نو ځکه له جدې څخه مکې مکرمې ته پرته له احرام راتګ صحیح دی. خو طائف له میقات څخه وتلی دی ، نو ځکه له هغه ځای څخه پرته له احرامه راتګ صحیح نه دی.

(آپ کې مسائل ج ۴ ص۹۵، احسن الفتاوی ج ۴ ص ۵۱۷ ، کتاب الفقه ج

## په يوه احرام کې څو عمري کيدلای شي؟

پوښتنه :زه غواړم پنځه عمري وکړم ، ددې عمرو لپار
دحرم له حدودو څخه بهر تنعيم يا جعرانه ته ځم، احرام تړم.اي
پنځه ځلې يعنې هري عمرې ته بيل ، بيل او که يو ځل احرا
وتړم. په يوه ورځ کې يوه عمره وکړم يا په همدې احرام کې پ
يوه ورځ کې دوه يا دري عمري کولای سم؟

ځواب :هرې عمرې ته بيل احرام تړل کيږي. احرام به تړ
طواف او سعي به کوي ،ويښتان به خريي او احرام ب
خلاصوي. يا به تنعيم يا جعراني ته ځي بيا به احرام تړي. پ
يوه احرام تريوې ډېري عمري کيدلای نسي. او ترعمرې
(طواف او سعی) وروسته که ويښتان لنډيا ونه خريبل شي ا
احرام خلاص نشي، ددوهمې عمرې لپاره احرام تړل جواز
نلري.

مسئله :که څوک عمره وکړي ، مدينې منورې ته لاړ شي،
مازديگر او ماښام لمنځونه هلته وکړي، بيا ترميقات تيرشي،
جدې ته لاړ شي، شپه تيره کړي سهار بيا مکې مکرمې ته لا
شي او دمکې دتللو قصد يې وُ نو په ميقات ورته احرام تړ
ضروري وُ او دهغه دکفارې لپاره وربانديې دم لازم دی. خو که
يې دجدې دتللو اراده وه ،دلته يې بيا دعمرې اراده وکړه نو
دم وربانديې لازم نه ده.

(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۹۵ ، فتاوی رحيميه ج ۸ ص ۲۹۰)



## دعمرې کولو طريقه

عمره وړوکی حج دی. هر وخت کيدلای شي. دحج له ورځو
پرته چې نه پکې کيږي، نور کومه مياشت او ورځ ورته
ځانگړې نه ده. هر وخت چې غواړې له ميقات يا حل څخه
احرام تړل کيږي، داحرام له محرماتو او مکروهاتو څخه ځان
وساتی، په مکه مکرمه کې يې اداب وساتي ، مسجد حرام ته
دباب السلام يا باب العمرة (يا له هرې دروزې چې موقع وه)
ننوزئ. اضطباع وکړئ يعنې تر ښي اوږې څادر لاندې کړئ
او په چپه اوږه يې واړوئ، طواف وکړئ او چې لومړۍ توري
پټې ته ودريږي دحجر الاسود استلام وکړئ يعنې دهغې لور
ته په لاس سره اشاره وکړي او تلبيه ويل چې يې داحرام تړلو
په مهال پيل کړې وه، هغه بنده کړي.په طواف کې رمل وکړي يعنې
دطواف په دريو لومړنيو گرځيدلو کې، اوږې پورته غورځوي ، نژدې
نژدې قدمونه کښيږدي او څه گړندی لاړ شي (يوازې دسړو لپاره)
داهلته چې ازدحام نه وي او په تنگ کې ستونزه نه وي ،کنه بيا چې
څرنگه موقع برابره وه هغسې دې طواف وکړي. ترطواف وروسته دوه
رکعته نفل وکړي ، حجر الاسود ته دتير په څير په لاس سره اشاره وکړي.
له باب الصفا څخه ووزئ .دحج په څير سعي وکړئ . وروسته په دکان يا
کوټه کې ويښتان غوڅ کړئ. ځان حلال کړي. يعنې عام کالي واغوندي
او داحرام قيود پای ته ورسوي. ترسعي وروسته هم دوه رکعته نفل کول
مستحب دی.بس عمره وشوه. (معلم الحجاج ص ۲۰۴)

**يادونه** :ترطواف وروسته دوه رکعته نفل کول واجب او
ترسعي وروسته مستحب دي.

## دعمرې تر فراغت وروسته تر حلق وړاندي جامي اغوستل

پوښتنه: ما په وروستنۍ ورځ چي کله عمره وکړه، د الوتکي دالوتو عجله مي وه، په دې بيړه کې مي دعمرې له فراغت وروسته، لومړی احرام خلاص کړ، جامي مي واغوستلې، بيا مي حلق وکړ (ويښتان مي غوڅ کړل) ددي حکم څه دی؟

ځواب: ددې غلطۍ له امله دربانديي دم نشته. خو دفطر د صدقي (سرسايي) په اندازه دربانديي صدقه لازمه ده. دا صدقه هرځای ورکول کيدای شي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۰۳)

مسئله: په عمره او حج دواړو کې، دويښتانو خريېل غوره دي. خو دحج تر اعمالو که څه وړاندي عمره وشي بيا يي غوڅول غوره دي ترڅو په حج کې وخرييل شي. داځکه چي حج تر عمرې غوره دی.

نو بهتر کار په بهتر وخت کې مناسب دی. که عمره دحج تر ورځو ډيره وړاندي وي، بيا دي سر وخرييل شي ترڅو يي فضيلت تر لاسه شي. ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم دسر خرييونکو لپاره درې ځله دمغفرت دعا کړي ده. او دويښته غوڅوونکو لپاره يي يوازې يو ځل دعا کړي ده، نو ځکه ويښتان خرييل غوره دي. (حج بيت الله کې اهم فتاوی ص ۹۵)

**********



## په عمره کې دوداع دطوف حکم څه دی؟

پوښتنه: په عمره کې آيا دوداع طواف واجب دی؟

ځواب: په عمره کې دوداع طواف واجب نه دی. خو افضل او غوره دی، که څوک دوداع له طواف څخه پرته ولاړشي هم کومه خبره نشته. په حج کې دوداع طواف واجب دی. رسول الله صلی الله عليه وسلم وائي: {له تاسو څخه دي څوک هم تر هغه نه روانيږي ترڅو يي دبيت الله طواف کړی نه وي.}

(په دې خبره حجاج مخاطب وو)

(حج بيت الله کې اهم فتاوی ص ۵۶، آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۰۹)

مسئله: دعمرې طواف پوره، ډير يا کم دی. که څه هم يو ځل ګرځيدل وي. که جنب، حائضې، نفاسې، يا بې اودسه طواف وکړ دم (وينه) واجب ده. خو که طواف را وګرځوي نو دم ساقطيږي.

مسئله: دعمرې کولو دواجب په ترک کولو بد نه (اوښ غوبې يا صدقه نه واجبيږي. بلکې يوازې دم (يو پسه يا دغوايي يا اوښ اوومه برخه) واجبيږي. خو دعمرې د احرام دممنوعاتو په ارتکاب سره، دحج داحرام دممنوعاتو دارتکاب په څير دم يا صدقه واجبيږي. (احکام حج ص ۱۰۶)

********

## په عمره کې په عرفات دنه وقوف لامل

پوښتنه: دحج اساسي ارکان دوه دي: دعرفات دريدل ا
دزيارت طواف او بيا سعي کيږي. عمره وړوکی حج دی. ن
په هغې کي ولي يوازې طواف او سعی دي؟ په عرفات دريدل
ولي پکې نشته؟

ځواب: په عمره کې دعرفات دريدل ځکه مشروع شوي ن
دي چي، دهغې وخت ټاکلی نه دی. دحج له ورځو پرته، په ټول
کال کې کيدلای شي. له همدې امله دعرفات په ميدان کې
ديوځای دريدلو هيڅ صورت نشته او په ځانګړې توګه په
دريدلو کې کومه ګټه نشته.

او که داسي وويل شي چي دحج په څير که عمرې ته هم
وخت ټاکل شوی وای، څه مشکل ؤ؟

ددي جواب دادی چي بيا نو عمره چيرې پاته کيدله، هغه
خو به حج ؤ.

او که په کال کې دوه ځله حج ته خلک غوښتل شوی وای
نو دهغه ستونزې خو له چا پټې نه دي.

اصل خبره داده چي په عمره کې مقصود، دبيت الله تعظيم
او دالله تعالی دنعمتونو شکر په ځای کول دي او دا مقصود
دطواف په کولو ترلاسه کيږي. نو له همدې امله دعرفات په
ميدان کې درايوځای کيدلو اړتيا نشته.

(رحمة الله الواسعه ج ۴ ص ۲۱۲)

*******



## داحرام حکمت

احرام دحج او عمرې لپاره دتحريمي تکبير په څير دی.
هغسي چي نيت کيږي، الله اکبر ويل کيږي او لمونځ کوونکي
لمونځ پيل کوي او ډير شيان په لمانځه کې هغه ته ناجائز
ګرځي، هم دغسي دحج او عمرې احرام او تلبيه دي.

په احرام تړلو سره دبنده دحج او عمرې اراده کلکيږي، د
اخلاص او عظمت څرګندونه، دعبوديت او کم وسي صورت
غوره کيږي. په ژبه او زړه سره اقرار کيږي، ټول خوندونه او
ښکلاوي پريښودل کيږي، يوازې دوې جامې اغوستلې
کيږي او سرې دمړو په څير جوړيږي. په دې ځانګړې جامه
(احرام) کې داستر حکمت دی چي آمر او غريب، شاه او ګدا
دالله تعالی په دربار کې، په يوه جامه کې حاضريږي. چاته
دويار موقع نه ترلاسه کيږي. شريعت همدا لباس (احرام)
خوښ کړی دی. په سادګي، پاکي او اساني کې همدا بې
ساري لباس دی. او په طبي لحاظ هم دا ګټور دی.

(معلم الحجاج ص ۱۱۱ ورحمة الله الواسعه ج ۴ ص ۱۸۹)

## په احرام کې څه ډول پڼې (څپلکي) پښو کيږي؟

مسئله: موزې او داسي جوړه چي دپښي له بيخ څخه
راپورته او له پورته او وتلي هډوکي سره ولګيږي، دا په احرام
کې منع دي. که همداسي موزه يا بوټ نه يوه شپه او ورځ په
پښو شي، دم واجبيږي. تر دې وخت که کم په پښو شي، دفطر
دصدقي په اندازه صدقه لازميږي. (احکام حج ص ۹۵)

مسئله :ځیني کسان په احرام کې داسي سلیپر یا څپلۍ استعمالوي چي دپښي لاندي هډوکي (هغه چي له لاندي څخه پورته لورته وي) پټوي. داسي بوټونه په احرام کې دسړیو لپاره منع دي، کوم چي هډوکي پکي پټ وي، ددې دپاره دې دومره برخه غوڅه کړي یا دې مختنۍ برخي ته جامه ورکړي چي هډوکي لوڅ پاته شي.

(معلم الحجاج ص ۳۵۸ –فتاوی دارالعلوم ج ٦ ص ۵۵۵)

لنډه دا چي په احرام کې د دواړو پیلډیو او دپښو هغه پاسنۍ برخه چي ویښتان ورباندې راشنه کیږي، خلاص پاته کیدل ضرور دي. نو داحرام په حال کې سړیو ته ښه دا ده چي څپلکې په پښو کړي .که څپلي یا بوټ داسي وو چي پیلډۍ او دپښو پاسنۍ برخه نه پټوي،دهغوی پښو کول هم صحیح دي. که پُندي او دګوتو پنجه پټه وي پروا نلري.(محمدرفعت قاسمي)

## داحرام په حال کې دګلانو یا نورو شیانو استعمال

مسئله :تراحرام تړلو وروسته، په غاړه کې دګلانو امیل اچول مکروه دي. په عمومي توګه خلک دې ته فکر نکوي او قصداً بوی لرونکي ګلان بویوي چي داهم مکروه دي. خو څه شي ورباندې نه لازمیږي.(احکام حج ص ۹۴)

مسئله :داحرام په حال کې خوشبویه شیان ژوول یا بویول

دخوشبویي دبویولو لپاره دهغوی په دکان کې کښیناستل، بوي لرونکي میوې یا وابنه ژوول یا بویول مکروه دي ،خو که پرته له ارادې ښه بوي راشي، پروا نلري. (معلم الحجاج ص ۱۱۴)



مسئله :داحرام په حالت کې دعطرو په دکان کې کښیناستل کومه ستونزه نلري، خو دبویولو په نیت پکې کښیناستل مکروه دي.(معلم الحجاج ص ۲۲۹)

مسئله :داحرام په حال کې داسي ځای ته داخلیدل چي هلته څه مینځل شوي وي او داحرام لرونکي جامو ته بوي را رسیږي خوورسره ونه لګیږي، څه نه واجبیږي.(معلم الحجاج ص ۲۳۰)

مسئله :داحرام په حال کې خوشبویه شیان عطر یا بل څه بویول یا ورسره پاته کیدل مکروه دي.(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۵٦)

مسئله :داحرام په حالت کې که په حجر الاسود خوشبویي لګیدلي وي، هغه دې نه مچوي او نه دې لاس وروړي.

(معلم الحجاج ص ۲۳۲)

*******************

## داحرام څادر به څرنګه وي؟

مسئله :له ځان سره داحرام دجامو دلرلو په فکر کې اوسئ. داحرام لپاره یو څادر (نژدې دوه نیم متره) او دلاندې تړلو لنګ(نژدې یو متر او ۲۵ سانتي متره) .دا جامه که سپینه وي غوره ده .په ډیره تودوخه او ډیره یخنۍ کې دوي ستري تولیاوي (ګانچي) احرام کول غوره دي چي هغه دڅادر او لنګ کارورکولای سي. خو که الله تعالی درته پراخي درکړې وي، نو دوه دري احرامونه له ځان سره ولرئ، که یو خیرن سي بل به استعمال کړئ.(احکام حج ۲۴)

مسئله :داحرام څادر باید دومره اوږد وي چي، تر ښنۍ

اوړي لاندې او په کينه اوږه واوړي. لنګ دومره اوږد وي چي له نو څخه دځنګونو ترسترګيو په سمه توګه ورسيږي.
(معلم الحجاج ص ۱۰۵)

مسئله :داحرام لپاره دا ضروري نه ده چي يو څادر او يو لنګ له پيله تر پايه په بدن باندې پاته شي، بلکې دهغوی دواړو بدلول جايز دي.(امداد الاحکام ج ۲ ص ۱۷۷)

مسئله :دسړيو لپاره احرام ددوو څادرونو په څير وي. سړيو ته داحرام په حال کې ګنډل شوي جامه اغوستل منع ده.
(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۲۵۴)

مسئله :سپينه جامه احرام کول مستحب دي. کنه توره يا بل ډول چي خوشبويه نه وي جايز دي.
(امداد الاحکام ج ۲ ص ۱۶۴ –ردالمحتار ج ۲ ص ۲۵۴)

مسئله :احرام که توريا بل رنګ وي هم جواز لري. (غوره سپين دی) ديخنې په مهال له تودو جامو څخه داکار اخستل کيدلای شي.تولياوي هم استعماليدلای شي.(احکام حج ص ۳۱)

مسئله :په احرام کې يوه جامه هم کافي ده چي له نو (ناف) څخه ترسترګيو پورې وربانديې بدن پټ شي او تر دوو زيات هم جايز دي.) (معلم الحجاج ص ۱۰۵)



## داحرام څادر دلنګ په ډول ګنډل

پوښتنه : که داحرام څادر، دلنګ په ډول وګنډل شي، ايا هغه استعماليدلای شي؟ بعضي کسان دپرانستي څادر په تړلو عادت نه وي او دستر دلوڅيدلو ويره يې وي، په تيره دخوب په مهال، نو آيا داحرام لنګ ګنډل کيدلای شي؟

ځواب : دستر(له نو دځنګونو ترسترګيو) دلوڅيدلو ويره که وه ،نو داحرام د څادر دګنډلو اجازه شته خو که اړتيا نه وي، ګنډل يې مکروه دي. (فتاوی رحيميه ج ۸ ص ۲۸۶ د غنية المناسک ص ۴۷ په حواله)

مسئله : دلنګ ددواړو سرونو ګنډل مکروه دي ،خوکه چا دستر دحفاظت لپاره داکار وکړ بيا دم واجب نه ده.(معلم الحجاج ص ۱۱۴)

مسئله :که يو څادر داحرام لپاره کافي نه وُ. دوه څادرونه سره يوځای کول او ګنډل احرام کيدلای سوای. په ګنډل شوي جامه (فرش،څادريا بل شي) باندې محرم بيده کيدلای شي.
(فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۲۱۹)

مسئله :غوره داده چي احرام بالکل ګنډل شوي نه وي. خو که دوې ټوټې سره وګنډلې شي هم جواز لري .(امداد الفتاوی ج ۲ ص ۱۶۴ ، درالمحتار ج ۲ ص ۲۵۴ په حواله او معلم الحجاج ص ۱۰۵)

مسئله :داحرام لنګ ته تاراچول او تر ملا تړل مکروه دي، د احرام څادرونو ته غوټه وراچول، په غاړه کې بندول مکروه دي. څادر او لنګ غوټه کول يا سره ګنډل ، ستن يا بل څه پکې ورکول يا تاريکې بندول مکروه دي.(معلم الحجاج ص ۱۱۴)

مسئله :داحرام په لنګ کې دساعت يا پيسو لپاره جيب جوړول جايز دي. (معلم الحجاج ص ۱۱۵)

## داحرام دنيت ضروري مسائل

مسئله : يوازې په زړه کې دحج دنيت په کولو احرام نه صحيح کيږي. تلبيه او کوم بل ذکرچي دهغه قايمقام وي ضروري دی. همداسي پرته له نيته يوازې په تلبيه ويلوسره هم نه محرم کيږي . داحرام لپاره نيت او تلبيه دواړه ضروري دي.

مسئله :داحرام نيت کول په زړه کې ضروري دی. په ژبه ويل يي يوازې مستحسن دي. دڅه شي لپاره چي احرام وتړي دهغه په زړه کې نيت کيږي. (معلم الحجاج ص ۱۰۲)

مسئله : احرام له دوو خبرو سره تړل کيږي. نيت کول او ورسره تلبيه ويل . که چا نيت وکړ، تلبيه يي ونه ويله او يا يي تلبيه وويله خو نيت يي ونکړ احرام نه تړل کيږي.

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۴۵)

مسئله :يوازې په نيت کولو احرام نه پيل کيږي، بلکې دتلبيي دالفاظو له ويلو سره پيليږي. دتلبيي دالفاظو په ويلو احرام شروع کيږي، له همدې امله دتلبيې تر ويلو وړاندې دي سرلوڅ کړل شي.(احکام حج ص ۳۲)

(کله، کله الوتکه وځنډيږي. په احرام کې پاته کيدل او داحرام پابندۍ کول ستونزمن وي. نو ددې لپاره په کور، يا هوايي ډګر کې دي دوه رکعته نفل وکړل شي، احرام دي وتړل شي ،خو نيت او تلبيه دي په الوتکه کې تر سپريدلو وروسته ووايي، ترڅو دا اونوري پريشانۍ نه وي.) (محمدرفعت قاسمي)



## دتلبيې ضروري مسائل

مسئله :تلبيه يعني بشپړ لبيک په ژبه سره ويل شرط دی. که په زړه کې وويل شي کفايت نکوي.

مسئله : ګونګ به ژبه ښوروي ځکه الفاظ ويلای نشوای.

مسئله : هرهغه ذکرچي دالله تعالی تعظيم پکې مقصود وي،دتلبيې ځای نيسي. لکه لا اله الا الله ، الحمدلله ، الله اکبر او نور.

مسئله :تلبيه په اردو ، فارسي، ترکي (پښتو) او نورو ژبو جايز ده خو په عربي ويل يي غوره دي.

مسئله : که کوم بل ذکر داحرام په وخت کې ويل کيږي احرام صحيح کيږي، خو تلبيه پريښودل مکروه ده.

مسئله :داحرام تړلو په مهال، تلبيه يا بل ذکر يو ځل ويل فرض دي. تکراريي سنت دی .که تلبيه وايي نو درې ځله دي ووايي.

مسئله : دحالاتو تغير يعني په سهار، ماښام کې ، بهرتللو ، دننه تللو په مهال ، له خلکو سره دملاقات ، له سواري کښنته کيدلو ، لوړې ته ختلو يا راکښته کيدلو او نورو وختونو کې تلبيه مستحب او مؤکد ده . يعني دنورو مستحباتو په مقابل کې په دې تاکيد ډير دی.

مسئله : که څو تنه سره يوځای شي، يوځای دي تلبيه نه وايي، بيل، بيل دي ووايي.

مسئله : په تلبیه کې دغږ لوړول مسنون کار دی. خو دومره لوړ نه چې یا تاسو یا لمونځ کوونکو یا بیده کسانو ته تکلیف وي.

مسئله : په مسجدحرام ، منٰی،عرفات او مزدلفه کې هم تلبیه ویل کیږي خو په مسجد کې دې په زوره نه وایي .

مسئله : په طواف او سعی کې تلبیه نه ویله کیږي، د میرمنو په زوره تلبیه ویل منع دي. (معلم الحجاج ص ۱۰۴)

## احرام له کوم ځایه تړل کیږي؟

که راساً مکې مکرمې ته دتللو اراده وي ، نو په الوتکه کې ترسپریدلو وړاندې په هوائي ډګر کې باید احرام وتړل شي او تلبیه ویل پیل شي. خو که ترسپریدلو وړاندې، احرام و نه تړل شي نو جدې ته تررسیدلو یو ساعت وړاندې، باید ضرور احرام وتړل شي او که ترمیقات پرته له احرام څخه تیر شي دم (وینه-قرباني) وربانډې واجبیږي. (داځکه چې له هند او نورو ځایونو چې الوتکې ځي، دقرن المنازل له میقات یا دهغوی له برابر څخه تیریږي، له هغه ځایه څخه دتیریدلو په مهال باید حجاج ضرور احرام ولري.

– که لومړی مدینې منورې ته دتللو انتظام وي، بیا له دې ځای څخه داحرام تړلو ضرورت نشته ، بیا چې له مدینې منورې څخه مکې معظمې ته ځي، له ذوالحلیفې څخه به احرام تړي.



## داحرام تړلو مسنونه طریقه

– تراحرام تړلو وړاندې مستحب دي چې حجامت وکړي. نوکان واخلي ، دبغل او نو لاندې ویښتان لرې کړي. بیا د احرام په نیت غسل وکړي، که دغسل موقع یا سهولت نه وي اودس دې وکړي.

– ترغسل یا اودس وروسته دې سرې ګنډل شوې جامې لرې کړي اولنګ دې وتړي ، څادر دې واغوندي او خوشبویي دې ووهي. خو په جامه بهیې داغ نه پریوزي ، که دا دواړه جامې سپیني او نوې وي غوره دي.(که لنګ په مابین کې وګنډل شي هم روا ده . ځکه هغه کسان چې له ګنډلو پرته له لنګ سره عادي نه وي، هغوی ته ګنډل شوې لنګ اغوستل ښه دي تر څو یې دعورت لوڅیدلو ویره نه وي ، له نامه تر ځنګنونو پوزي لوڅ نشي.)

– میرمنې دې داحرام لپاره ګنډل شوې جامې نه لرې کوي. دهغوی لپاره احرام دادی چې خپل سرپټ او مخ لوڅ ولري.

– داحرام ترتیاري کولو وروسته، که مکروه وخت نه وي دوه رکعته نفل دې داحرام په نیت وکړي. غوره داده چې په لومړي رکعت کې دکافرون او په دوهم رکعت کې داخلاص سورت ووایي. ښکاره دې وي چې ددې لمانځه دکولو په مهال، په څادر یا بل شي سرپټ شي داغوره دی. ځکه تر اوسه لا داحرام پابندي پیل شوې نه ده.

- كه دا مهال ميرمنې د ناپاكۍ په حال كې وي، لمونځ دې نه كوي، د احرام نيت دې وكړي او تلبيه دې ووايي.
- تر دې وروسته دې سړی په زوره او ميرمنې په پټه ډول درې ځله تلبيه ووايي. د تلبيې الفاظ دا دي: لبيك اللهم لبيك، لبيك لا شريك لك لبيك، ان الحمد والنعمة لك والملك لاشريك لك. (حاضر يم اې الله! زه حاضر يم، ستا هيڅ شريك نشته، حاضر يم ټولې ستاينې او ټول نعمتونه يوازې تا لره دي او ټوله پادشاهي تا لره ده، ستا كوم شريك نشته.)
- له نيت سره تر تلبيه ويلو وروسته تاسو محرم سوا ست او د احرام ټولې پابندۍ شروع سوي. دا ياد ولرئ چې د احرام لپاره نه يوازې نيت كافي وي او نه هم يوازې تلبيه بلكې تلبيه او نيت يو ځاى شرط دي.
- تر تلبيه وورسته، چې هره دعا غواړئ ويې كړئ، دا دعا مستحب ده:

{اللهم اني اسئلك رضاك والجنة واعوذبك من غضبك والنار.}

(اى الله! زه ستا رضا او جنت غواړم او ستا له قهر او له دوزخ څخه پناه غواړم.)

- د احرام تر پيل كيدلو وروسته، ډير شيان چې وړاندې روا وو، هغه هم حرامېږي. مثلاً خوشبويي لګول، ګنډل شوي



جامې اغوستل، نوكان يا ويښتان اخيستل، سر يا مخ پټول، ښكار كول، له ميرمنې سره جماع كول يا د بې حيايي خبرې كول. (د دې تفصيل د حج په كتابونو كې وګورئ ياد يې كړئ او د ټولو خيال ساتل مناسب دي. محمد رفعت قاسمي.)
- د تمتع حج په صورت كې چې مكې مكرمې ته ورسيږئ تر طواف كولو وړاندې تلبيه ويل بنده كړئ. خو په حج افراد او قران كې تلبيه، د ذي الحجې تر لسمې د جمرې عقبې تر ويشتلو جاري وي. تر هغه چې د تلبيه د ويلو حكم وي په كثرت او ذوق سره يې جاري ولرئ. د ويلو په مهال يې معنى په ذهن كې ولرئ او دا تصور وكړئ چې يو بې وزله مين د خپل مهربان بادار دربار ته ځي.

## په بيت الله كې حاضري

- مكې مكرمې ته په رسيدلو د هستوګنې او نورو په اړه د انتظام تر بشپړولو او بې غمې سره، تاسو حرم شريف ته د حاضريدلو لپاره تيارېږئ.
- كله چې مو په بيت الله شريف ستر ګې ولګيږي، په ډاډه زړه ډېر په بدرګه دعا وكړئ، دا د قبول موقع ده.

## د طواف كولو طريقه

مسئله: د طواف معنى ده، د يوه شي خوا و شا را ګرځيدل. د طواف په نيت كولو سره د بيت الله خوا و شا (څلور طرفه) اوه ځلي ګرځيدلو ته طواف وايي. يو ځل ګرځيدلو ته شوط وايي. پرته له بيت الله څخه تر څه شي

ناجایز دي.دطواف لپاره،دطواف نیت کول فرض دي. پرته ل
نیت څخه که څوک هرڅومره واري تري وګرځي طواف نه بلل
کیږي. دطواف نیت (په عربي او هره ژبه چې وي) داسي دی:
یا الله ! زه ستا درضا لپاره دطواف اراده کوم ، هغه راته
اسانه کړي او راڅخه قبول یې کړي.) په زړه کې داسي نیت
کول فرض دي او په ژبه ویل یې غوره دي.

دکعبې مبارکې په کوم کونج کې چې حجرالاسود لګیدلی
دی، هغې ته نژدې په ځمکه یوه توره پټۍ دیوه بالبنت پ
پراخي،دصفا لورته دابنیږي چې څنګ ته حجرالاسود ده.
(دتورې پټۍ په ختم کې،دصفا ددروازې لورته،دمطاف
په پای کې یو ګروپ ؤ چې اوس نشته ده.) مسجد حرام ته چې
-له هري دروازي دننه شئ، له هغې پټۍ سره به دریږئ او تلبیه
به بس کوي. دطواف کولو ترنیت وروسته به داحرام دڅادر
ښي لوری ترښې اوږه لاندې او په چپه اوږه به یې واړوي. دې
ته اضطباع وایي. داسي دطواف ترپوره کیدلو پوري وي
دې پټۍ ته په راتلو به داسي دریږئ چې حجراسود مو خوا کې
وي. تاسو به ددې پټۍ چپ لورته دریږئ چې ښۍ پښه مو ل
پټۍ سره ولګیږي،چپه پښه به داسي بیله وي چې، ښې اوږ
دحجرالاسود له څنډې سره وي او بدن دحجرالاسود څنګ ت
کیڼ لورته وي.یعنې تاسي به دحجر اسود مخته په پټۍ داسي
دریږئ چې حجرالاسود ستاسو مخته وي.بیا به:
{بسم الله،الله اکبر ، ولله الحمد}



وایاست او دواړه لاسونه به پورته کړئ، داسي لکه په لمانځه
کې چې پورته کیږي، ترغوږونو پوري به لاس پورته کړئ،
ددواړو لاسونو ورغوي به کعبې او حجرالاسود ته مخامخ
وي، بیا به لاسونه پریږدئ. دې عمل ته استقبال وایي. دا
یوازې په پیل کې کیږي. په نورو شوطونو کې استقبال نه
کیږي. یعني دتحریمي دتکبیر په څیر به لاسونه غوږو ته
وړئ، بیا به یې نه پریږدي بلکې استلام به کوي . یعنې دواړه
لاسونه به دحجر الاسود لورته داسي نیسئ چې ورغوي یې
دحجر الاسود لورته وي او شاوي یې ستاسو مخته وي. کله
چې لاس پورته شي، داسي به وایاست :

{بسم الله ، الله اکبر و لله الحمد.}

چې دا وواياست، دلاسونو ورغوي به ښکل کړئ .خو چې
دمچولو غږ یې پورته نشي . دې عمل ته استلام وایي.
کله چې له استلام څخه فارغ شئ، طواف به پیل کړئ. دا
چې طواف مو دعمرې طواف دی او تر دې طواف وروسته
سعی هم کوئ، له همدې امله به په دریو لومړنیو شوطونو کې
رمل هم کوئ. درمل مطلب دادی(که ممکن وي، ازدحام نه
وي او موقع وي) دواړه اوږې به ښوروي او دپهلوانانو په څیر
به په لنډو قدمونو ژر، ژر ځئ. تر دریو شوطونو وروسته به په
نورو شوطونو کې په اعتدال سره ځئ.په هغوی کې رمل نشته
، میرمنې به په یوه شوط کې هم رمل نه کوي.

ناجایز دي. دطواف لپاره، دطواف نیت کول فرض دي. پرته ل
نیت څخه که څوک هرڅومره واري تري وګرځي طواف نه بل
کیږي. دطواف نیت (په عربي او هره ژبه چي وي) داسي دی
یا الله ! زه ستا درضا لپاره دطواف اراده کوم، هغه را
اسانه کړي او راڅخه قبول یي کړي.) په زړه کې داسي نیت
کول فرض دي او په ژبه ویل یي غوره دي.

دکعبې مبارکې په کوم کونج کې چي حجرالاسود لګیدل
دی، هغې ته نژدې په ځمکه یوه توره پټې دیوه بالښت
پراخي، دصفا لورته دابیې چي څنګ ته حجرالاسود ده.

(دتورې پټې په ختم کې، دصفا ددروازې لورته، دمطا
په پای کې یو ګروپ ۇ چي اوس نښه ده.) مسجد حرام ته چ
له هري دروازي دننه شئ، له هغې پټې سره به دریږئ او تلبیه
به بس کوي. دطواف کولو ترنیت وروسته به داحرام دڅاد
ښې لوری تر ښې اوږه لاندې او په چپه اوږه به یي واړوي. د
ته اضطباع وایي. داسي دطواف ترپوره کیدلو پوري وي
دې پټې ته په راتلو به داسي دریږئ چي حجراسود موخو اک
وي. تاسو به ددې پټې چپ لورته دریږئ چي ښې پښه مو ل
پټې سره ولګیږي، چپه پښه به داسي بیله وي چي، ښې اوږ
دحجرالاسود له څنډې سره وي او بدن دحجرالاسود څنګ ت
کیڼ لورته وي. یعنې تاسي به دحجراسود مخته په پټې داس
دریږئ چي حجرالاسود ستاسو مخته وي. بیا به:

{بسم الله، الله اکبر ، ولله الحمد}



واياست او دواړه لاسونه به پورته کړئ، داسي لکه په لمانځه
کې چي پورته کيږي، ترغوږونو پوري به لاس پورته کړئ،
ددواړو لاسونو ورغوي به کعبې او حجرالاسود ته مخامخ
وي، بيا به لاسونه پريږدئ. دي عمل ته استقبال وايي. دا
يوازې په پيل کې کيږي. په نورو شوطونو کې استقبال نه
کيږي. يعني دتحريمي دتکبير په څير به لاسونه غوږو ته
وړئ، بيا به يي نه پريږدي بلکې استلام به کوي. يعنې دواړه
لاسونه به دحجر الاسود لورته داسي نيسئ چي ورغوي يي
دحجر الاسود لورته وي او شاوي يي ستاسو مخته وي. کله
چي لاس پورته شي، داسي به واياست :

{بسم الله ، الله اكبر و لله الحمد.}

چي دا وواياست، دلاسونو ورغوي به ښکل کړئ. خو چي
دمچولو غړيي پورته نشي . دې عمل ته استلام وايي.

کله چي له استلام څخه فارغ شئ، طواف به پيل کړئ. دا
چي طواف مو دعمرې طواف دی او تر دې طواف وروسته
سعی هم کوئ، له همدې امله به په دريو لومړنيو شوطونو کې
رمل هم کوئ. درمل مطلب دادی (که ممکن وي، ازدحام نه
وي او موقع وي) دواړه اوږې به ښوروي او دپهلوانانو په څير
به په لنډو قدمونو ژر، ژر ځئ. تر دريو شوطونو وروسته به په
نورو شوطونو کې په اعتدال سره ځئ. په هغوی کې رمل نشته
، ميرمنې به په يوه شوط کې هم رمل نه کوي.

هر شوط چي پوره شي دحجرالاسود استلام به کوئ. يعنی

چي راوګرځئ او حجرالاسود ته ورسیږئ، نو :

{بسم الله ، الله اکبرو لله الحمد.}

به وایاست او حجرالاسود به ښکلوئ، دلاس په لګولو او د لاس په ښکلولو هغه عمل کیږي چي وړاندي وشول. داسي یو شوط پوره شو. همداسي اوه شوطه له حجرالاسود څخه پیل او په حجرالاسود ختم شي ، یو طواف بشپړ شو. تر اوو شوطونو وروسته، اتم ځل به هم استلام یعني دواړو لاسونو ورغوي به د حجرالاسود طرف ته کړئ ، مچ یي کړئ .

استلام د هر شوط په پیل کي کیږي او چي اخیري شوط پوره شي د حجرالاسود استلام بیا کیږي. نو په یوه طواف کي اته استلامونه کیږي.

(احکام حج-ص ۴۵ کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۹۵ ، رحمه الله الواسعه ج ۴-۲۰۸)

## دطواف په هر شوط کي دنوي دعا لوستل

مسئله : په طواف کي اوه ځله ګرځیدل دي ، په هر وار ګرځیدلو کي نوي ، نوي دعا کول ضرور نه ده. بلکي په کومه دعا کي چي خشوع ډیره وي ، هغه دي وایي . له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د رکن یماني او حجرالاسود ترمنځ دا دعا منقول ده :

{ربنا اتنا في الدنيا حسنة وفي الاخرة حسنة وقنا عذاب النار.}

دطواف په اوو ځلو ګرځیدلو کي چي دعاوي په کتابونو کي راغلي دي، هغه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه رانقل شوي نه دي. له ځینی دینی مشرانو څخه منقولي دي.



عام خلک یي نه سم تلفظ کولای شي او نه یي په معنی او مفهوم پوهیږي. بیا د طواف په ګرځیدلو کي یي وایي، نورو خلکو ته هم تشویش پیدا کیږي. ځیني خلک قرآن کریم په زوره پکي تلاوت کوي داسي هم مناسب نه دي.

دریمه کلمه ، درود شریف یا بله دعا چي خوندوره وي، هغه په پټه خوله چي نورو ته تشویش نه وي، وویله شي.

(آپ کي مسائل ج ۴ ص ۱۱۲ - احکام حج ص ۴۷)

مسئله : د حج په مقاماتو کي د کومي دعا تعینول ښه نه دي. کومه چي خوښه وي ، کومه چي ضرورت وي ، هغه دي ویله کیږي. ځکه په ټاکلو الفاظو کي د زړه رقت او خشوع ډیر وخت کمه وي. نو ځکه دا غوره ده چي د خپلي ژبي او خپلي محاوري دعا وشي. (احکام حج ص ۴۸)

## تر طواف وروسته ددوه رکعته لمانځه حکم

مسئله : په طواف کي تر اوو شوطونو ګرځیدلو وروسته دوه رکعته لمونځ کول واجب دي. که هغه طواف فرض وي، واجب وي او که نفلي. غوره داده چي دا طواف او لمونځ سره متصل ادا کړای شي. خو چي مکروه وخت نه وي. که مکروه وخت ؤ ، بیا چي کله وخت پیدا شي، دوه رکعته لمونځ لازم دی، که څه هم وطن ته بیرته راشي ، خو ځنډ یي مکروه دی.

(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۷۵ - احکام حج ص ۴۹)

مسئله : که چا په مکه مکرمه کي، د طواف لمونځ ونکړ، د هغه اداء واجب ده . له ذمي یي نه ساقطیږي. په ټول ژوند کي

يي اداء كولای شي. (معلم الحجاج ص ۱۳۳ – حج بيت الله کې اهم فتاوی ص ۵۳)

(تر هر طواف وروسته دوه رکعته لمونځ کول واجب دي، په حرم کې يې کول سنت دي. يعني په هغه ساحه کې چې هلته ښکاره کول جواز نلري. نو له مسجد حرام سره، سره په هوټل او دخپلې هستوګنې په ځای کې هم کيدلای شي. که يې همدا لمونځ هير شو، هېواد ته لاړ، هلته دې وکړي. په تاخير او ځنډ کې يې دم يا بل څه نشته. واجب يې اداء کيږي. (محمد رفعت قاسمي)

## ايا په مقام ابراهيم کې نفل اداء کول ضروري دي؟

پوښتنه: ځيني خلک فکر کوي چې، خلک ډير دي خو دطواف دوه رکعته غواړي په مقام ابراهيم کې يې وکړي، هلته ده ته هم ستونزې وي، ميرمنې يا کمزوري خلک احتمالاً زخمي هم شي، ايا دا لمونځ دازدحام له امله هلته ستونزه نلري؟

ځواب: له ازدحام څخه ضرور ستونزه ليدله کيږي، په مقام ابراهيم کې دوی يا نورو ته ضرر رسيږي. نو هلته دې لمونځ نکوي. ځکه چا ته ضرر رسول حرام دي.

مسئله: که ځای ؤ (چا ته تکليف نه رسيده) نو دطواف دوه رکعته، دابراهيم عليه السلام په مقام کې کول غوره دي. که په حطيم کې ځای وي، هلته دې وشي او کنه بيا که هر ځای وشي بلکې په ټول حرم شريف کې يا بهر په خپل هستوګن کې يې کول هم جايز دي کراهت نلري. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۱۴)

مسئله: دطواف دوه رکعته په مقام ابراهيم کې کول، دا



معنی چې مقام، دلمونځ کوونکي او بيت الله ترمنځ راشي. مقام ابراهيم ته چې څومره نژدې وي، هغومره غوره دی. که څه فاصله وي بيا هم باک نلري. خلکو ته تکليف ورکول او وړاندې تلل ناپوهي ده.

مسئله: دګڼه ګوڼې په مهال، نژدې ورتلل تاسو ته تشويش او نورو ته ضرر رسيږي. نو غوره داده چې څه لرې وکړای شي.

مسئله: دطواف ددوو رکعتونو لپاره که له مقام ابراهيم سره ځای پيدا شي، نو ښه داده چې په لنډ قرائت سره وشي او لنډه دعا وکړو ترڅو نورو ته ځای خلاص شي او ورته ستونزه نه وي. اوږده دعا يا نفلونه دې نه کوي. (احکام حج ص ۵۰ مفتي محمد شفيع رحمه الله)

## دڅو طوافونو نوافل يوځای کول

مسئله: که څوک څو طوافونه په پرلپسې توګه وکړي او بيا دهر طواف لپاره دوه رکعته هم هغسې مسلسل وکړي. داسې کول مکروه دي. خو دطواف دوه رکعته په مکروه وخت کې مکروه دي. که هغه مهال همداسې مسلسل طواف وشي او دمکروه وخت تر تيريدلو وروسته، دهر طواف لپاره دوه، دوه رکعته وشي، مکروه نه دی. (فتاوی محمودیه ج ۳ ص ۱۸۳ احکام حج ص ۵۰)

## معذور شخص به دطواف نفل څرنګه کوي؟

مسئله: معذور شخص چې څرنګه نور لمونځ کوي، هغسې به همدا دوه رکعته هم کوي. يعني په ولاړه به يې کوي، که يې وس نه درلود په ناسته به يې کوي. طواف دې په خپله يا له بل سره او يا هم په ګرځنده چوکۍ کې لکه عام معذور خلک چې يې کوي، ودې کړي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۱۳)

## د طواف نفل، په ممنوع وخت کې کول

مسئله : دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد، په ممنوعه وخت کې، یعني تر مازدیګر وروسته تر ماښامه، له سهار څخه د اشراق تر وخته او دزوال په مهال د طواف دوه رکعته کول جایز نه دي. په دغه وخت کې که یې هرڅومره طوافونه وکړل، تر مکروه وخت وروسته دا دوه رکعته د هر طواف لپاره بیل وشي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۱۴، فتاوی محمودیه ج ۳ ص ۱۸۲)

مسئله : که دا دوه رکعته په مکروه وخت کې وکړي، د علماوو په اتفاق هغه نه اداء کیږي. که یې په منځ کې دا خیال شو چې دا وخت مکروه دی، پرې دې یې ږدي دي. که یې بشپړ کړل د مکروه وخت تر تیریدلو وروسته دي بیا وکړي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۵۲۷ ورد المحتار په حواله، معلم الحجاج ص ۱۳۳)

## که یې نفل هیر شول او بل طواف یې پیل کړ

مسئله : که تر طواف وروسته یې دوه رکعته هیر شول او دوهم طواف یې پیل کړ، که یې دوهم طواف تر یو ځل ګرځیدو وړاندې ورته یادشول، هغه دې پریږدي اودوه رکعته دې وکړي. که یې یو شوط پوره کړ او ورته یاد شول، بیا که تر هرځل ګرځیدلو وروسته ورته یادشول، طواف دې بشپړ کړي او بیا دې دوه رکعته د مخکني طواف لپاره وکړي او دوه رکعته دې د دې طواف لپاره وکړي.
(فتاوی محمودیه ج ۳ ص ۱۸۳ معلم الحجاج ص ۱۳۳)

*********



## د طواف ضروري مسائل

مسئله : د طواف تر پیل کولو وړاندې، تر غوږونو پورې د لمانځه په څیر لاسونه اوچتول یوازې لومړی ځل دي، اوه ځله نه دي.

استلام یعني د دواړو لاسونو ورغوي د حجر الاسود لور ته کول، ګواکې په حجر الاسود ایښودل دي او د لاسونو شا خپل مخته کول او بیا خپل لاسونه ښکلول اته ځله دي.
(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۰۰، احکام حج ص ۴۶)

مسئله : د حجر الاسود استلام یعني ښکلول اول ځل او اتم ځل په اتفاق سره مؤکد سنت دي. د منځ په ګرځیدلو کې ډیر تاکید شوی نه دی. (احکام حج ص ۴۷)

مسئله : تر کوم طواف وروسته چې سعی وي، د هغه په اول دري ځلي ګرځیدلو کې رمل (پهلواني) هم کیږي. تر کوم طواف وروسته چې سعی نه وي، هلته رمل هم نشته.

مسئله : که طواف په رمل سره پیل شي، تر یو دوه ځله ګرځیدلو وروسته دومره ګڼه ګونه وي چې رمل کولای نشي، رمل دې پریږدي او طواف دې پوره کړي.

مسئله : که ناروغ یا زوړ کس رمل ونکړای سي پروا نلري.

مسئله : په ټول طواف یعني اوه ځله ګرځیدلو کې، رمل کول مکروه دي. خو په کولو یې کومه جزاء نه لازمیږي.

(معلم الحجاج ص ۱۳۴)

(رمل د طواف په پيل کې يوازې په دري ځله ګرځيدلو کې
دي. که په لومړي ځل ګرځيدلو کې هير شي، په نورو دوو کې
او که په دوهم کې هم هير سو، يوازې په دريم کې دي رمل
وکړي. که په دريم شوط کې هم هير شي، بيا دې هيڅ نه کوي.
لکه څرنګه چي په دريو لومړنيو شوطونو کې رمل مسنون
دی. همداسي په څلورو وروستنيو کې رمل نه کول مسنون
دي. يعني که يو ځای سنت پاته شول، بل ځای دې نه پريږدي.
خو اضطباع دي تر اخر ځل ګرځيدلو پوري وي او دوه رکعته
د طواف د لمانځه په مهال دې ختم کړي. يعني په پټه اوږه دې
لمونځ وکړي، خو سر دي لالوڅ وي. ځکه د احرام په حالت کې
سر نه پټيږي. نو که رمل، اضطباع يا استلام پاته شي، څه
سزاء او بل څه نه لازميږي. محمد رفعت قاسمي)

مسئله : د طواف ځای، د بيت الله څلورو لورو ته د مسجد
دننه دی. که له بيت الله څخه لري وي او که نژدې، د ستنو په
منځ کې طواف وکړای شي هم طواف کيږي، د مسجد حرام په
چت، که څه هم کعبه مبارکه ټيټه وي، طواف کيږي. خو له
مسجد څخه بهر وتل او طواف کول، بيا طواف نه کيږي.
(معلم الحجاج ص ١٣٧)

مسئله :په طواف کې د سجدې ځای ته کتل مستحب دي.
بيت الله يا بل لور ته کتل د استحباب خلاف دي. (احسن الفتاوی
ج ٤ ص ٥٤٨ د غنيه ص ٦٥ په حواله)

مسئله :په طواف کې پټه خوله او هيـــڅ نه ويل هم جواز



لري. د طواف په وخت د دعا کولو په حال کې لاس نه
اوچتيږي. (معلم الحجاج ص ١٣٧)

مسئله: د طواف په مهال، قرآن کريم تلاوت کولای شي،
خو غوره ذکر دی. که تلاوت کوي هم په لوړ غږ دي نکوي.
(فتاوی رحيميه ج ٨ ص ٢٨٧ – احکام حج ص ٤٩)

مسئله :ذکر، دعا يا تلاوت په لوړ غږ کول يا له بلې وجه
غږ لوړول، داسي چي طواف کوونکو او لمونځ کوونکو ته
تشويش پيدا کيږي، مکروه دي. (عمدة الفقه ج ٤ ص ١٨٩)

مسئله :د طواف پيل له حجرالاسود څخه کيږي. که چا
ونکړه، د مکې د هستوګني په مهال بيا طواف کول ورباندي
واجب دی. که يي بيا طواف ونکړ او هيواد ته لاړ، قرباني
کول ورباندې واجب دي.

مسئله : د طواف د پيل په مهال غوره داده چي ټول بدن يي
حجرالاسود ته مخامخ وي، تر دې چي کومه برخه يي د هغې له
مخامخ کيدلو څخه پاته نشي.

مسئله : له واجباتو څخه داده چي د کعبې له دروازې سره
نژدې ښې لوري ته طواف وشي او کعبه کيڼ لوري ته پاته
شي. ځکه کعبه د امام په څير ده، مقتدي که يوازې وي نو د
امام ښي لوري ته دي دريږي، که طواف د دې په خلاف وشي،
يعني له کيڼ لوري شروع شي او کعبه ښې لوري ته پاته شي.
نو بيا دوباره طواف او يا دم (وينه– قرباني) واجب ده.
(کتاب الفقه ج ١ ص ١٠٧٤)

مسئله : څوک چي د مریض او معذور لپاره طواف کوي اجرت ورته جایز دی. (معلم الحجاج ص۱۳۶)

مسئله : دطواف لپاره ، جامه ، بدن او ځای له نجاست څخه پاک ساتل مؤکد سنت دي.

که چا طواف کاوو او ټول لباس یي ناولي ؤ نو سنت یي ترک کړل ، خو کوم تاوان ورباندي نشته . (کتاب الفقه ج۱ ص ۱۰۷۴)

مسئله : که طواف کوونکي دطواف نیت وکړ او معذوریا بي هوښه نه ؤ ، که یي په خپله نیت وکړ طواف یي کیږي او که بیهوښه ؤ طواف یي نه کیږي، که طواف ورباندي کوونکي نیت وکړ طواف یي کیږي.(معلم الحجاج ص۱۳۶)

مسئله :ستردعورت لکه څرنګه چي په لمانځه کې واجب دی، په طواف کې هم واجب دی ، نو دبدن دکومو ځایونو پټول چي واجب دي، که په هغوی کې دکوم اندام څلورمه برخه لوڅه وي، نو واجب پاته سول . بیا به دوهم ځلي طواف کوي او یا قرباني ورباندي واجب ده .(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۷۴)

مسئله : په طواف کې که میرمن له سړي سره نژدې شي، طواف یي نه فاسدیږي. نه دسړي او نه هم دمیرمني .

(معلم الحجاج ص ۱۳۶)



## طواف غوره دی او که عمره ؟

مسئله :ډیر طواف کول افضل دي، خو شرط دادی چي څو مره وخت عمره کیږي هغو مره یا تري ډیر وخت په طواف تیر کړي. که دغسي نه وي بیا دعمرې په ځای یو اودوه طوافونه غوره نه دي .(آپ کي مسائل ج ۴ ص ۲۸)

مسئله :دبهر هستوګنو لپاره تر نفلي لمونځ نفلي طواف ښه دی. (معلم الحجاج ص ۱۵۰)

## له طواف څخه پر ته داوږې لوڅول

پوښتنه : په حج یا عمره کې چي احرام تړلی وي، ډیر خلک اوږه لوڅوي ، ددي حکم څه دی؟

جواب :شرعي مسئله داده چي په حج او عمره کې چي تر طواف وروسته سعی وي په هغه طواف کې رمل او اضطباع کیږي . له رمل څخه مطلب دادی چي دپهلوانانو په څیر اوږې وښوروي او څه اندازه ګړندی لاړ شي (دایوازې په دریو لومړنیو شوطونو کې، هغه هم چي ځای او موقع وي .)

له اضطباع څخه مطـــلب دادی چي ښي اوږه لوڅه وي. له داسي طواف څخه پرته په تیره بیا په لمانځه کې داوږې لوڅول مکروه دي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۹۰)

مسئله :په عامو حالاتو کې دي اضطباع یعني داحرام څادر تر ښی اوږې لاندې اوپه کینه اوږه اچول نه کیږي. خصوصاً په لمانځه کې دي اضطباع نه کوي. تر کوم طواف وروسته چي سعي وي په هغه طواف کې اضطباع سنت ده .

(فتاوی رحیمیه ج۸ ص ۳۰۱

## سعی څه شی ده؟

مسئله :دصفا او مروه دوي غونډۍ چي مسجد حرام ته نژدې دي (اوس په مسجد حرام کې شاملي دي.) دسعي معنی منډې وهل دي او دشرع په اصطلاح، دصفا او مروه تر منځ په یوه خاصه طریقه اوه ځله تلل راتلل سعی بلل کیږي. دا یوازې داسمعیل(علیه السلام) دمور، هاجرې (علیهما السلام) دیوه ځانګړې عمل یادګار دی. په حج او عمره دواړو کې سعی کول واجب دي. (احکام حج ص۵۳)

دمسعي (دسعی ځای) اوږدوالی ۳۹۴/۵ متره ده. دا اندازه دصفا دغونډۍ له دیوال څخه پیل دمروه په لوړه تر دیوال پوري ده. دسعی دځای سور ۲۰ متره دی اوس یي سور ډیر شوی دی. (تاریخ مکه ص ۹۴)

## دسعی شرائط او آداب

مسئله : سعی تر طواف وروسته کیږي. که چا تر طواف وړاندي سعی وکړه، هغه اعتبار نلري تر طواف وروسته به یي بیا کوي.

مسئله : سعی تر طواف وروسته دستي کول ضرور نه ده. خو له طواف سره متصله سنت ده. که دکوم ضرورت له امله یي تر منځ څه ځنډ راغی کومه ستونزه نشته. له عذر پرته یي تاخیر مکروه دی. (معلم الحجاج ص ۱۴۳ کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۷۷)

مسئله : سعی کول پیاده واجب ده. که کوم عذر وي په سواري هم کیدلای شي. که له عذره پرته په سواري وشي دم واجبیږي. (احکام حج ۵۴)



## په سعی کې ځنډ او په ګرځیدلو کې فاصله راوستل

مسئله: زموږ په نزد سعی واجب ده. له طواف سره دستي کول یي سنت ده، واجب نه ده، که چا دستړیا یا بل عذر له امله سمدستي په طواف پسي ونکړه پروا نلري. خو که پرته له عذره وځنډیده مکروه ده. (معلم الحجاج ص ۱۴۳، کتاب الفقه ۱۰۷۷)

مسئله :دزیارت طواف، حلق، رمی او قرباني په حج کې ټول دنحر په ورځ کول واجب دي. خو دصفا او مروه تر منځ سعی کول، په دې ورځ کې کول لازم نه دي. بلکې وروسته یي کول هم جایز دي. نو که چا ته عذر ؤ یا یي ستړیا لري کوله، ارام کول یي غوښتل. ارام کولای شي، نن نه سبا یا لس پنځلس ورځي وروسته یي کول هم جواز لري. همداسې دسعی دا اوه ځله ګرځیدل په پرلپسي توګه سنت دي. واجب نه دي. که تر څو ځله ګرځیدلو وروسته چا ساه کوله او نور ګرځیدل یي وځنډول وروسته یي پوره کړل نو سعی بشپړ او صحیح ده. په دې باندي کومه جزا نه واجب کیږي.

مسئله : که چا په متفرق ډول سعی وکړه، مثلاً په ورځ کې یو ځل لاړ او په اوو ورځو کې یي اوه ځله ګرځیدل پوره کړل، داسي هم جایز دي، خو دا کار دعذر له امله څخه جایز دی او که یي عذر نه درلود، دسنت خلاف کار دی. (غنیة المناسک ص ۶۸، معلم الحجاج ص ۱۴۷، احکام حج ص ۴۳)

************

************

## دسعی مسنونه طریقه

ترکوم طواف وروسته چي سعی کیږي، د هغه طواف تر
فراغت وروسته، دحجرالاسود داسي استلام کیږي لکه د
طواف په پیل او پای کې چي کیږي. (لاسونه حجرالاسود ته
مخامخ پورته کول، ښکلول او بسم الله، الله اکبر لا اله الا الله، ویل)
دا دوه استلامه، یوځل دسعي کوونکو لپاره مستحب دي. تر
استلام کولو وروسته، له سنت سره برابر له باب الصفا څخه
بهر وزي، که له بلي دروازې ووزي هم جایز دي. بیا صفا
غونډۍ ته دومره وخیژي چي بیت الله شریف تر سترګو شي،
قبلي ته مخ وګرځوي دسعي داسي نیت وکړي :
(یا الله! ماستا درضا لپاره دصفا او مروه ترمنځ داوه ځله
ګرځیدلو سعی اراده کړي ده هغه زما لپاره اسانه او قبوله
کړي.)
(نیت په ژبه یا زړه سره وشي، په هره ژبه کیدلای شي، په
عربي ژبه ضروري نه ده.) دا نیت په زړه کې کول هم کافي دي
خو په ژبه کې ورسره ویل یې غوره دي. بیا دې دواړه لاسونه
داسي پورته کړي لکه په دعا کې چي پورته کیږي (دتحریمي
دتکبیر په ډول دي نه پورته کوي. ځیني نا خبره کسان یې
هغسي پورته کوي.) بیا دې تکبیر او تهلیل یعني :
(لا اله الا الله وحده، لاشریک له، له الملک وله الحمد یحي
ویمیت وهو علی کل شی قدیر.) په خشوع او خضوع سره د ځان
او نورو لپاره دعا وکړي. دا هم ددعا دقبلیدلو ځای دی. څه



چي یې زړه وي، هغسي دعا دي وکړي، دعا کول دسعي په
ادابو کې ده.
اوس دي نو سعی پیل کړي، دا خبره دې په یاد ولري چي
اضطباع به نه کوي. اضطباع د طواف ددوو رکعتونو ترکولو
وړاندي ختمه شوي وه، نو په پټه اوږه به سعی کوي، خلکو ته
دې ګوري او اضطباع دې نه کوي. بیا دي ذکر کوي. له صفا
څخه دي دمروه لورته لاړ شي، کله چي لږ لاړ شي، نښانونه
ښکاري چي په کتابونو کې هغه "میلین اخضرین" بلل شوي
دي. هلته اوس نه ستني سته او نه هم ډبري. اوس فقط یوازې
زرغونه ټیوب لایټونه (زرغونه څراغونه، ګروپونه) په دیوال
او چت ښکاري.
دا دګروپونو زرغونه پټۍ دوه ځایه ښکاري، دهمدې دواړو
ترمنځ یوازې سړي پکې په چټک تګ تیریږي داسي چي په
متوسط منډه تیر شي. (دمیرمنو لپاره ځغاسته نشته)
تر دې میلانو چي تیر شي، تر مروه پوري دي په عادي تګ
ځي، پراخ ځای دې ودریږي، لږ دي ښي لورته مایل شي، مخ
دي دبیت الله لورته وګرځوي، ودي دریږي. لکه څرنګه چي
په صفا کې یې ذکر او دعا کړي وه، دلته دې هم وکړي. دلته
هم دعا قبلیږي. دا له صفا څخه تر مروه پوري یو ځل ګرځیدل
(یو شوط) شو. بیا به له مروه څخه دصفا په لورځي او
ددواړو میلونو ترمنځ به دتیر په څیر منډه کوي. په صفا کې به
بیا دپیل په توګه دعا کوي. دا له مروه

شو طه شول. داسي دي اوه ځله لاړشي، سعى پوره كيږي. بيا
دي دوه ركعته نفل په مسجد حرام كښ وكړي. تر طواف
وروسته دوه ركعته واجب وو، خو ترسعى وروسته مستحب
دي. كه چا ونه كړل، قضاء نلري. دالمونځ دې په مروه كښ نه
كوي. كه يي كوي په مسجد حرام يا په خپل هستوګن ځاى
كښ دي وكړي.

مسئله: له كعبې شريفي څخه يو ځل راګرځيدل يو شوط
پوره كيږي. خو په سعى كښ له صفا څخه تر مروه يو شوط او له
مروه څخه تر صفا پوري دوهم شوط دى. دبشپړې دورې نوم
شوط نه دى. (احكام حج ص ۵۶، معلم الحجاج ص ۱۴۲، كتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۷۵)

## دصفا په ځاى له مروه څخه سعى كول

مسئله: له صفا څخه دسعى پيل كول واجب دي. كه دصفا
په ځاى له مروه څخه سعى پيل شي، نو دواجب دپريښودلو له
امله لومړني ځل ګرځيدل اعتبار نلري. تر هغه وروسته به اوه
ځله ګرځيدل بشپړوي. كه دغه وخت اووم شوط تر سره نكړي
نو كله چي وغواړي دا يو ځل ګرځيدل دې وكړي. خو دحج
سعى به دعرفات تر وقوف وړاندي تكميلوي، كنه تهوله سعي
به بيا كوي. كه پاته شي بيا وينه (دم) لازميږي.
(احسن الفتاوى ج ۴ ص ۵۱۸، حج بيت الله كي اهم فتوى ۵۸)

مسئله: سعى له صفا څخه پيل او په مروه باندي پاى ته
رسيږي، كه له مروه څخه پيل شي لومړى تلل نه شميرل كيږي
بلكې چي صفا ته راشي نو سعى شروع كيږي، له هغه ځايه دي اوه
ځله تلل پوره كيږي. (معلم الحجاج ص ۱۴۶)



## دسعى ضروري مسائل

مسئله: سعى له صفا څخه پيل كول او په مروه باندي پاى
ته رسول واجب دي. (معلم الحجاج ص ۱۴۴)

مسئله: نفلي طواف كيدلاى شي خو نفلي سعى كيدلاى
نشي. (معلم الحجاج ص ۱۵۰)

## په سعى كښ دغلطي حكم

مسئله: كه تهوله سعى يا يكې څو ځله ګرځيدل پاته شي، يا
پرته له عذره په سپرلۍ وشي، حج كيږي خو دم واجبيږي. كه
بيا پياده سعى وشي دم ساقطيږي. خو كه دعذر له امله په
سپرلۍ سعي وشي، څه شى نه واجبيږي. كه دسعى يو، دوه، يا
دري ځله ګرځيدل پاته شي يا پرته له عذره په سپارلي وشي نو
دهرځل ګرځيدلو په بدل كښ صدقه لازميږي. (احكام حج ص ۱۰۳)

مسئله: كه د سعى يو ځل ګرځيدل پاته شي، صدقه دي
وركړل شي. كه دوه يا دري ځله ګرځيدل پاته شي دهرچكر په
بدل كښ صدقه واجبيږي. (احسن الفتاوى ج ۴ ص ۵۱۸ حج بيت الله كي اهم فتاوى ۵۸)

مسئله: كه په سپرلي سعي وكړي، يعني په ګرځنده چوكۍ
يا بل څه، نود دوو زرغونو ميلونو ترمنځ دي په تيزي سره
بيايي، خو چي ځان يا نورو ته تكليف نه وي.

مسئله: پياده يا په سپرلي، دومره منډه سنت ده چي نورو ته
دتكليف سبب نشي. (احكام حج ص ۵۷)

مسئله: دزرغونو ميلانو ترمنځ، ډيره تيزه منډه سنت نه ده بلكې په
متوسط ډول به داسي چټک ځي چي تر رمل تيز خو تر ډيره منډه ورو
وي. (داحكم يوازي سړيو ته دى)

مسئله: دمیلین اخضرینو (زرغونو میلانو) ترمنځ ګړندي تلل مسنون دي.

مسئله: که دمیلونو ترمنځ په ځغاسته لاړنشي، یا په تولـه سعی کي ځغاسته وکړي دابده ده، خو دم یا صدقه ورباندي نه واجبیږي.

مسئله: که دګڼه ګوڼي له امله، دزرغونو میلونو ترمنځ په منډه تلل نورو یا خپل ځان ته تکلیف ؤ، بیا ځغاسته سنت نه ده. که موقع وه منډې دي وهي یا دي دتیز تلونکو په څیر حرکت کوي. (معلم الحجاج ص ۱۴۵)

مسئله: که دسعی په مهال جماعت ودرید یا جنازه وه نو سعی دي پریږدي، په لمانځه کې دي ګډون کوي او بیا دي پاته ګرځیدل پوره کړي. که کوم عذر پیښ شي هم دي پاته ګرځیدل وروسته پوره کړي.

جایزي خبري کول چي، دمصروفیت، خشوع او خـــضوع خـلاف نـه وي، همدغسـي خوړل، څښـل چـي دسـعی پـه ګرځیدلو کې بیلوالی نه راولي مباح دي. (معلم الحجاج ص ۱۴۹)

(طواف او سعی دلمانځه په څیر نه دي چي، په ضروري خبره یا بل څه ماتیږي.)

مسئله: سعی اوه ځله ګرځیدل دي، له صفا څخه تر مروه پوري یو چکر (یو ځل ګرځیدل) دي او له مروه څخه تر صفا پوري دوهم ځل ګرځیدل دي. همـــــداسي اوه ځله ګرځیدل دي. (معلم الحجاج ص ۱۴۴)



مسئله: سعی دي په خپله کوي (کـه دعـذر لـه امله) پـه سپرلي کیږي هم ودي کړي. په سعی کې نیابت جایز نه دی. خو که تر احرام وړاندي بیهوښه شي، بیایي بل شخص په ځای سعي کولای شي خو چي دسعی ترختم پوري بیرته حال تـه رانشي. (معلم الحجاج ص ۱۴۶)

مسئله: دعـورت (دسړیولپاره لـه نو څخـه دځنګانـه تـر سترګي) پټول په هرحال کې فرض دي. دلته په احرام کي یي ډیر اهتمام ضرور دی. (معلم الحجاج ص ۱۴۹)

(ځکه کله احرام واوړي یا دخوب په مهال بي پردي شي.)

مسئله: په اوداسه او پاکو جامو کې سعی کول مستحب ده، خو له دې پرته هم سعی کیږي.
(احکام حج ص ۵۹، حج بیت الله کې اهم فتاوی ص ۵۵)

مسئله: دسعی په دوران کې اودس شرط نه دی. که له او دس پرته سعی وشي، کیږي او دا حکم دعرفات دډریدلو هم دی.
(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۰۹ – فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۳۱۹)

مسئله: که دطواف او سعی ترمنځ ډیر ځنډ هم وي یا هم کومه جزا نشته. (معلم الحجاج ص ۱۴۳)

مسئله: ترطواف وروسته سعی او دسعی اوه ځله ګرځیدل واجب دي.

مسئله: سعي پیاده کیږي، که له عذر پرته په سپرلي وشي یا به بیا سعي کوي یا دم لازمیږي.

مسئله :سعی ترطواف وروسته ده ،که ترطواف وړاندې
وشي اوطواف وروسته وکړي، نوهغه سعی نه شمیر له کیږي.
هروخت چي ورته امکان ولري دهغې بيرته کول واجب دي.
(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۷۷، معلم الحجاج ص ۱۴۸)

مسئله :دصفا اومروه ترمنځ، دسعی لپاره نيابت(دځان
پرځای بل څوک درول) جايزنه دی. که عذرؤ،سعی دې په سپرلی
وکړي. (غنية المناسک ص ۷۰)

## چي له سعی فارغ شي څه به کوي؟

مسئله :که احرام يوازې دعمرې لپاره وي يا دتمتع حج وي
نو اوس احرام او دعمرې افعال بشپړ شول . يعني اوس
دعمرې دري عملونه ختم شول چي هغه لومړی احرام دوهم
طواف او دريم سعی ده.(مستحب داده چي په مطاف کې دوه
رکعته لمونځ وکړل شي، ترطواف وروسته چي دوه رکعته
کیږي هغه واجب دي خوترسعی وروسته دوه رکعته لمونځ
چي دی، هغه مستحب دی. که چا ادا نکړ،نوقضا نلري، دا لمونځ
به په مروه کې نه کوي، مطاف ته به راځي هلته به يې اداء کوي.)

اوس وروستنی کارپاته دی چي هغه حلق يعني سرخريل
يا ويښتان کوچني کول دي، سړی به دخريلو دکان ته ځي
خپل ويښتان به يا خريي او يا به يې کوچني کوي يا که ورسره
کوم ملګری وي، که يې هغه کوچني کړي هم جايز دي. په دې
کې ځيني خلک غلط پوهيږي. وايي که دوه ملګري وي نو
ديوه او بل سرونه څرنګه وخريي. لومړی دي يو په دلاک



وخريي يا دي بل وخريي ، داخبره غلطه ده ، هغه چي دعمرې
ياحج ټول کارونه کړي دي، يوازې داحرام خلاصول پاته دي ،
اوس ورته هرڅه جواز لري ، دملګرې سردي ورته وخريي يا
دي ملګري دده سر ورته وخريي. هرصورت يې جايز دی. په
دې کې څه ستونزه نشته.

دميرمنې دويښتانو دپريکولو صورت دادی چي ، دسر
ويښتان دي سره يوځای ونيسي، کوم دوه دري تارونه چي
اوږده دي هغه دي غوڅ کړي. يا دي دګوتي ديوه بند په
اندازه په خپله يا دي خاوند يا بله ميرمن ورته بياتي کړي، خو
غير محرم دي ورته نه غوڅوي . په مسجد کې دي هم ويښتان
نه اخلي ، په خپله هستوګنځای او يا هم تر مروه بهر دي
واخلي. خو دحرم په حدودو کې غوڅول ضروري دي.
دويښتانو تراخيستلو وروسته، دعمرې عمل بشپړ شو.
دتمتع په حج کې دوه شيان دي، يو حج او بله عمره ، دعمرې
عمل پوره شو. اوس داشخص دمکي هستوګن دی. حيثيت
يې هم هغه دی کوم چي دمکې مکرمې دهستوګن دی. لکه
هغه چي له خپله کوره احرام تړي همدا شخص يې هم له خپل
هستوګن ځای څخه دحج احرام تړلای شي.

په مکه مکرمه کې دهستوګني په مهال چي نفلي طوافونه
ډير وشي. دجماعت دلمانځه پوره اهتمام وشي، لږ تر لږه
يوځل په حرم کې قرآن ختم شي . دمکې دهستوګنو په څير د
عائشې رضی الله عنها مسجد ته لاړ شي، دنفلي عمري نيت

وشي احرام وتړي او دعمرې ستره نيک مرغي تر لاسه کړي.
په مکه کې دهستوګنې په مهال چې نفلي طوافونه کيږي په
هغه کې اضطباع او رمل نشته. اضطباع او رمل په هغه طواف
کې دي چې په هغه پسې سعي هم وي. خو تر نفلي طواف
وروسته هم دوه رکعته لمونځ کول واجب دي. (محمدرفعت قاسمي)

## دويښتانو ترکمولو يې خرييل غوره دي

تر قرباني وروسته، احرام خلاصيږي. د احرام د خلاصولو
طريقه، حلق يعني سرخرييل يا ويښتان کوچني کول دي. د دي
غوره طريقي حکمت دا دی چې : لکه دلمانځه له تحريمي
څخه چې په سلام ګرځولو سره وزي، هغسې له احرام څخه
دوتلو طريقه حلق (ويښتان خرييل يا کوچني کول) دي. دا
طريقه له دوو وجهو تجويز شوي ده:

لومړی: دا طريقه چې له احرام څخه وربانديي وزي، دوقار
خلاف نه ده. ځکه يي دا طريقه معلومه کړي ده چې که خلک
ازاد پرېښودل شي، چې هر ډول غواړي هغسې به له احرام
څخه وزي، نو معلومه نه ده چې خلک به څه څه کارونه وکړي.
يو به جماع کوي، بل به ښکار کوي، بل به بيا بل عمل کوي.
همداسي که يي له لمانځه څخه دوتلو لپاره آزادي ورکړي
وای نو خلک به دلمانځه په يوه منافي عمل سره له لمانځه
وتل، معلومه به نه وه، په مناسب او نامناسب کارونو به له
لمانځه څخه وتل.

له همدې امله، له لمانځه څخه دوتلو طريقه يي په سلام



ويلو واجب کړه چې دا يو با وقاره عمل دی او په خپل ذات کې
يو ذکر هم دی. همداسي يي له احرام څخه دوتلو لپاره دا لاره
غوره کړه چې له متانت سره منافي نه ده.

دوهمه وجه يي دا ده چې د احرام په مهال سرونه خيرنيږي.
دويښتانو بيخونه دوړي خاوري نيسي او خيرن کيږي. دا خيره
هغه مهال لرې کيدلای شي چې سر وخرييل شي. نو له همدې
امله دا عمل غوره دی. (رحمة الله الواسعه ج ۴ ص ۲۰۷)

همداسي کله چې څوک د پادشاهانو دربار ته ځي نو
د پاکي ښه اهتمام کوي، حجاج چې احرام خلاص کړي
د زيارت د طواف لپاره د خدای تعالی دربار ته حاضريږي. نو
دلته ښه په پاکي کې حاضريدل وړ او مناسب دي او د سر په
خرييلو خيري ښې پاکيږي، له همدې امله يي سر خرييل
افضل او غوره دی.

يوه بله وجه دا هم ده چې سر وخريي او احرام خلاص کړي.
د دې اثر تر څو ورځو پوري پاته کيږي، تر څو ويښتان لوی
شوي نه وي هر ليدونکي دا محسوسوي چې دې شخص حج
کړي دی، د دې عبادت (حج) شان لوړيږي، ځکه هم تر قصر
يعني لنډي کولو يي حلق يعني خرييل غوره دي.

(رحمة الله الواسعه ج ۴ ص ۲۴۸)

## دچا په سر كه ويښتان نه وو نو څه به كوي؟

پوښتنه: څوک حج ته لاړل، څو عمري يې وكړي، داچي هره ورځ يا يوه نه بله ورځ يې عمره كوله، نو ويښتان يې نږدې يو سوت (دانچ اتمه برخه) يا تر دې هم واړه ليدل كيږي، ايا داخريل صحيح كيږي، كنه؟

جواب: په پوښتل شوي صورت كې، كه په سر باندې د حلق له امله ويښتان نه وو، نو يوازې ورباندې چاړه تيرول كفايت كوي. خو داچاړه تيرول واجب دي. هغه ويښتان چي دګوتې تر بند پوري يې ښودلي دي، هغه په دې صورت كې دي چي په سرباندې ويښتان وي.

(فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۴۰۷ عالمګيري ج ۱ ص ۱۴۹)

## داحرام خلاصولو لپاره څومره ويښتان غوڅول كفايت كوي؟

پوښتنه: په عمره كې خلک ليدل كيږي چي تر عمره كولو وروسته، پرته له دې چي ويښتان وخريي احرام خلاصوي يا ځيني خلک له څلورو لورو معمولي ويښتان واخلي او دا وايي چي دسر دويښتانو د څلورمې برخي دغوڅولو حكم دی، داسي پوره كيږي يا يې ځيني كسان په ماشين باندې سر خريي. په دې هكله څه حكم دی؟ دهغوی داحرام په خلاصولو دم يا بل څه لازميږي، كنه او مسنونه طريقه كومه ده؟

ځواب: دحج او عمرې داحرام خلاصولو لپاره څلور صورتونه غوره كولای شوي. دهريوه حكم به بيل، بيل وليكل شي:



لومړی: داچي دچاړې په واسطه ټول ويښتان وخريل شي، داصورت ترټولو غوره دی. او دخريينكو لپاره رسول الله صلى الله عليه وسلم درې ځلي درحمت دعا كړي ده، څوک چي حج يا عمري ته لاړ شي يا هم درسول الله صلى الله عليه وسلم درحمت له دعا څخه محروم پاته شي، ددي محرومي څه درک دی؟ له همدې امله حج او عمرې ته دټولو تلونكو لپاره دا مشوره ده چي درسول الله صلى الله عليه وسلم له دعا څخه محروم پاته نشي، بلكې حلق دي وكړي او احرام دي خلاص كړي.

دوهم صورت يې دادی چي دبياتي يا ماشين په واسطه دسر ټول ويښتان واخلي. داصورت له كراهت څخه پرته جواز لري.

دريم صورت يې دادی چي لږ تر لږه، دسر څلورمه برخه ويښتان واخلي، داصورت تحريمي مكروه او ناجايزه دی. ځكه په يوه حديث كې ددي ممانعت شوی دی، خو احرام ورباندې خلاصيدلای شي.

اوس تاسو په خپله فكر وكړئ څوک چي دحج او عمرې په څير سپيځلي عبادت پايله په يوه ناجايزه فعل سره كوي، آيا حج او عمره به يې قبوله شي؟

څلورم صورت دادی چي څو ويښتان له دې خوا او هغې خوا واخلي او دسر تر څلورمي برخي كم وي، احرام ورباندې نه خلاصيږي، بلكې دغه شخص په احرام كې پاته كيږي او

داحرام دممنوعه شیانو پابنديورباندي لازمه ده. که ګنډل شوي جامي واغوندي او یا دنورو ممنوعاتو مرتکب شي نو دم (وینه-قرباني) ورباندي واجبیږي.

نن سبا بي خبره خلک نورو ته ګوري او همدا اخلورم صورت عملي کوي، دمسئلي له مخې داخلک تل په احرام کې پاته کیږي. داحرام په حالت کې دټولو ممنوعاتو مرتکب کیږي. هغه دخپلي بي خبرې له امله داسي فکر کوي چي موږ څوویښتان غوڅ کړل، احرام مو خلاص کړ. حال دا چي احرام یي خلاص شوي نه دی او داحرام په حالت کې داحرام خلاف د اعمالو ارتکاب کوي او دالله تعالی قهر او غضب ته برابریږي.

هـ.ا لامل دی چي په زرګونو خلکو کې که دکوم یوه حج او عمره دشریعت سره برابر وي، نور هسي سیر او سیاحت وکړي، راشي او حاجي ورته ویل کیږي.

عوامو ته ښایي چي دحج او عمرې مسائل له علماوو څخه زده کړي، یوازې په لیدلو کتلو کار نه کیږي. (آپ کي مسائل ج۴ ص۱۲۴)

## ایا دټول سر دویښتانو برابرول واجب دی؟

مسئله: که دګوتې دبند په اوږدوالي ویښتان واخستل شي، دسر دڅلورمې برخي دګوتو د بندونو په برابر اخستلو سره محرم خلاصیږي، خو دټول سر ویښتان برابرول واجب دي. (له دې خوا او هغې خوا دي څوتاره ویښتان نه اخلي) که د ګوتې دبند په اندازه ویښتان نه واخستل شي. یعني ویښتان واړه وي، نو خریيل یي ضروري دي. له خریيلو پرته یي احرام نه خلاصیږي.



له وړاندي تفصیل سره سم، دسر دویښتانو تر غوڅولو یا خریيلو وروسته حلالیږي، څومره واري چي له شرعي طریقي پرته یي احرام خلاص کړي وي، دهر وار لپاره دي دم اداء کړي او داحرام تر خلاصولو وروسته چي یي څومره ممنوعات کړي وي. په هغوی دم یا بل څه نشته. (احسن الفتاوی ج۴ ص۵۳۶)

## داحرام خلاصولو څه طریقه ده؟

مسئله: داحرام دخلاصولو لپاره حلق (سرپاک خریيل) غوره او قصر (دویښتانو کوچني کول) جایز دي. دامام ابوحنیفه (رحمه الله) په نزد، داحرام دخلاصولو لپاره دا شرط دی چي، لږترلږه به دسر دڅلورمي برخي ویښتان دګوتې دبند په اندازه لنډ کړل شي. که دسر ویښتان واړه وي، دګوتې تر بند لنډوي، بیا دي په چاړه وخریيل شي، له دي پرته احرام نه خلاصیږي. (آپ کې مسائل ج۴ ص۱۰۲)

مسئله: که چا په صابون یا دوا سره دسر ویښتان لري کړل هم کافي دي. که په سر ویښتان نه وي یا پک وي یوازې چاړه ورباندي تیرول بس دي. که په سر باندي ټپ وي او چاړه ورباندي تیریدلای نشي نو دا واجب ور څخه ساقطیږي.
(فتاوی محمودیه ج۱۳ ص۱۸۰- معلم الحجاج ص۱۷۶)

مسئله: قصر (دویښتانو کوچني کول) هغه مهال کیدلای شي چي ویښتان دګوتې دبند په اندازه وي، که تر هغه واړه وي، بیا حلق (خریيل) دي. قصر نه صحیح کیږي. هغه کسان چي څو، څو ځله عمره کوي، هغوی ته لازم دي تر څو تر هر ځل

عمري وروسته حلق وکړي. په قصر کولو دهغوی احرام
خلاصيدلای نشي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۴۲)

مسئله: که ماشين واړه ويښتان هم اخستلای شي، بيا
سمه ده، دټولو عمرو لپاره صحيح ده خو په دې حالت کې
احتياط دادی چې بيا ورباندې چاړه تيره شي. (کيدلای شي
ويښتان خورا واړه وي او ماشين ورنشي.) (ف محموديه ج ۳ ص ۱۸۳)

مسئله: که کوم ځنګل يا داسې ځای ته لاړ شي چې هلته
چاړه يا بياتې نه وي، داعذر اعتبار نلري ترڅو يې سر خرييلي
يا يې ويښتان کوچني کړي نه وي، نه حلاليږي. (معلم الحجاج ص ۱۷۶)

## داحرام په حالت کې ديوه او بل سر خرييل

پوښتنه: له قربانۍ څخه تر فراغت وروسته، دويښتانو
دکمولو لپاره مو دحجام پلټنه وکړه، خو ومونه موند. زما
ملګرې چې په احرام کې ؤ، زما ويښتان يې راکوچني کړل. نو
حکم يې څه دی؟

ځواب: داحرام دخلاصولو په نيت، محرم خپل ويښتان هم
کوچني کولای شي او دبل هم. ستا ملګري چې ستا داحرام
دخلاصولو لپاره يې ستا ويښتان کم کړل، ښه يې وکړل. دهغه
په ذمه دم نشته. (آپ کې مسايل ج ۴ ص ۱۴۳)

مسئله: که ترحلق وړاندې دواړه له نورو کارونو فارغ وي
او اوس فقط حلق پاته وي، دامهال ديوه او بل حلق (ويښتان
خرييل) جايز دي. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۵۱۲ غنية ص ۹۳ فتاوی رحيميه ج ۳ ص ۱۱۵)



مسئله: داحرام دخلاصولو لپاره، ميره دخپلې ميرمنې او
پلار دخپل زوی ويښتان کمولای شي. ميرمن داکار په خپله
هم کولای شي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۴۴)

مسئله: که حاجي متمتع، قارن يا مفرد وي چې، ترحلق
وړاندې يې ټول ارکان پوره کړي وي، دسر خرييلو وخت
راغلی وي او بل محرم هم ټول کارونه کړي وي، خپل ويښتان
يا دبل ويښتان کمول داحرام په ممنوعاتو کې نه دي. نو
دامحرم خپل حلق هم کولای شي او ترخپل حلق وړاندې دبل
محرم ويښتان هم غوڅولای شي.

په بخاري شريف لومړی جلد ۱ – ۳۸۰ مخ کې، دحديبيې
دصلح په اړه راځي:

{صلح وشوه، رسول الله (صلى الله عليه وسلم) قرباني او حلق وکړل،
ويې ليدل چې صحابه (رضى الله عنهم) هم قرباني کوي او ديوه او بل
سرونه يې په داسې وخت کې خرييل چې هغوی محرم وو.}

له دې حديث شريف څخه ثابتيږي چې ترقرباني وروسته
محرم يو دبل سرونه خرييلای شي.

(فتاوی رحيميه ج ۸ ص ۲۹۶، دغنية المناسک په حواله ص ۹۳، معلم
الحجاج ص ۹۲، زبدة المناسک ص ۱۷۷ وفتاوی محموديه ج ۱۷ ص ۱۹۲)

************

## که تر حرم بهر حلق وکړي حکم يې څه دی؟

پوښتنه: چا عمره وکړه، بيا جدې ته راغی، په جده کې يې سر وخرييه چې داځای له حرم څخه وتلی دی، ددې لپاره حکم څه دی؟

جواب: دحج يا عمرې له احرام څخه دحلال کيدلو لپاره حلق يا قصر دحرم په حدودو کې ضروري دی. که بهر وشي دم لازميږي.

مسئله: که په حج يا عمره کې له حرم څخه بهر حلق وکړي نو دم باندې اوړي. که په حج کې دنحر تر ورځو وروسته حلق وکړي هم دم ورباندې لازميږي.

مسئله: که دعمرې له احرام څخه دحلالولو لپاره، دحرم څخه بهر حلق وکړي يا دحج له احرام څخه دحلال والي په نيت له حرم څخه بهر يا دنحر تر ورځو وروسته سر وخريي، نو دم واجبيږي او دوه دمه، يو له حرم څخه دبهر کيدلو او بل دنحر تر ورځو وروسته په حلق کولو.

په پوښتل شوي صورت کې چې جدې ته په رارسيدلو سر وخريي، نو يو دم لازميږي او دا په حرم کې ذبح کول ضروري دي. (منٰی تول‍ه دذبح ځای دی، همداسې دمکې کوڅې.)

(فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۲۳۴، زبدة ج ۶ ص ۸۶ په حواله، معلم الحجاج ص ۱۴۷، لومړی هدايه ص ۲۵۶)

مسئله: حجامت تر لسو دوولسو وارو پورې کيږي، که شپه وي او که ورځ، تر رمی او قرباني وروسته په حرم کې دوينښتانو اخستل ضروري دي. که له دې څخه وروسته او تر



حرم بهر حجامت وکړل شي، حلاليږي خو دم (وينه – قرباني) واجبيږي. (معلم الحجاج ص ۱۷۶)

مسئله: حج يا عمره کوونکی که دحرم له حدودو څخه بهر ووزي، بيا حرم ته بيرته راشي او سر وخريي نو څه نه واجبيږي خو که حاجي دنحر تر ورځي وروسته راشي او سر وخريي دځنډيو دم ورباندې واجبيږي. (معلم الحجاج ص ۲۴۷)

## دمقدسې روضې دزيارت فضائل

درسول الله صلی الله عليه وسلم زيارت کول، ددنيا او اخرت دنيک مرغي پانګه ده. دايمان لرونکو دميني همدا اصلي مقصد دی. ددې دفضليتونو بيان ته څه اړتيا نشته. خو ددې دربار درحمت او کرامت دبرکتونو غوښتنه ده چې کوم کسان دهغه ستر دربار زيارت ته ځي، دهغوی لپاره دابې کچې دولت يعني درسول الله صلی الله عليه وسلم دروضې دښکلا په ليدنه هم دلوړو درجو وعده شوې ده. دلته به دساري په توګه درې څلور مبارک حديثونه وليکل شي.

۱- درسول الله صلی الله عليه وسلم ارشاد دی: (څوک چې زما دزيارت لپاره راشي، له زيارت پرته يې بل کار نه وي، زه به يې ضرور دقيامت په ورځ شفاعت وکړم.)

۲- درسول الله صلی الله عليه وسلم لارښوونه ده: (څوک چې حج وکړي، بيا زما تر وفات وروسته زما دقبر زيارت وکړي، هغه داسې دی لکه زما په ژوند چې يې زما زيارت کړی وي.)

۳- درسول الله صلی الله علیه وسلم وینا ده : (څوک چې قصد وکړي چې زما زیارت ته راشي، هغه به د قیامت په ورځ زما په ګاونډ کې وي او څوک چې د حرمینو په کوم ځای کې مړ شي، هغه به الله تعالی د قیامت په ورځ د هغو خلکو په ډله کې را اوچت کړي چې په هغوی به ویره نه وي.)

۴- درسول الله(صلی الله علیه وسلم) ارشاد دی: (څوک چې زما تر وفات وروسته، زما زیارت وکړي ګواکې په ژوندیې زما زیارت کړی دی، څوک چې زما د قبر زیارت وکړي هغه ته د قیامت په ورځ زما شفاعت لازم دی. زما د امت هغه څوک چې وس لري او زما زیارت ونکړي نو د هغه عذر نه اوریدل کیږي.)

دابن عمر رضی الله عنهما عادت ؤ: کله چې به له کوم سفر څخه راغی، لومړی به سپیڅلې روضې ته حاضریده، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به یې سلام وړاندې کاوو.

عمربن عبدالعزیز رحمه الله، به له شام څخه مدینې منورې ته قاصد ولیږه ترڅو د ده سلام درسالت دربار ته ورسوي . داد تابعینو زمانه وه .داسې نور هم ډیر روایتونه شته چې ور څخه څرګندیږي چې اصحاب او تابعین څومره درسول الله صلی الله علیه وسلم دزیارت تږي وو او دهغه به یې څومره اهتمام کاوو. په اصل کې یوه مؤمن ته به دالله تعالی له دیدار څخه وروسته ،تردې کوم ښه نعمت وي چې هغه په خپلو سترګو ددې نور دګنبدې لیدنه وکړي او هغې دیوزلو تکیه ګاه ته سلام عرض کړي او بیا یې په جواب مشرف شي . (علم الفقه ج ۵ ص ۸۵)



## له زیارت کولو پرته که څوک راشي ؟

پوښتنه : که څوک حج ته لاړ شي، د روضې له زیارت کولو پرته بیرته راشي، دهغه حج بشپړه کیږي کنه؟

ځواب :څوک که درسول الله صلی الله علیه وسلم د روضې له زیارت کولو پرته راشي،حج یې اداء کیږي خو له بې غیرتې څخه یې کار اخستی او دمبارک زیارت له برکت څخه بې برخې شوی دی.که څه هم درسول الله صلی الله علیه وسلم پاکې روضې ته تلل، یو مستقل مندوب عمل دی.دحج په اعمالو کې داخل نه دی.خو څوک چې حج ته لاړشي نودديې نیک مرغې ترلاسه کول ورته آسانه دي.له همدې کبله په حدیث شریف کې راځي :(څوک چې دبیت الله شریف حج وکړي او زما زیارت ته رانشي، هغه له ما سره دغیرت خلاف کار وکړ .)

(آپ کي مسایل ج ۴ ص ۱۵۱)

مسئله :څوک چې حج وکړي او مجبوراً دپیسو دکموالي له امله مدینې منورې ته تلای نشي،دهغه حج پوره دی،کومه شبه پکې نشته . خو که له وس لرلو سره ،سره بیا هم لاړنشي، دا بده ده اودبې برخې توب خبره ده .خو دپیسو دکمښت له مجبوري څخه که ورنشي څه مواخذه وربانديې نشته .

(فتاوی دارالعلوم ج ٦ ص ۵۸۱ مشکوة شریف ج ۳۲ ص ۳۵۲)

*****************

## په نبوي مسجد کې ولي څلوېښت لمنځونه کول ضروري دي؟

پوښتنه: چا عمره وکړه ،نبوي مسجد ته حاضر شو، بيرته راغی .يعني په مدينه منوره کې يي څلوېښت لمونځونه ونکړل ايا څه ګناه ده؟

جواب :کومه ګناه خو نه ده، خو په نبوي مسجد کې د څلوېښت لمونځونو يو ځانګړي فضيلت دی، هغه يي تر لاسه نکړ.

په يوه حديث شريف کې، په نبوي مسجد کې د څلوېښتو لمونځونو چې د تحريمي تکبير تري پاته نشي، خاص فضيلت ياد شوی دی. الفاظ يي :انس رضی الله عنه له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه روايت کوي :{څوک چې زما په مسجد کې څلوېښت لمونځونه داسي ادا کړي چې کوم لمونځ (په جماعت سره) ور څخه پاته نشي، هغه ته له دوزخ او عذاب څخه برائت ليکل کيږي او له نفاق څخه به خلاص وي.(مسند احمد ج ۳- ۱۵۵ اپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۵۳ ،فتاوی محموديه ج ۳ ص ۱۸۶)

## د سپيڅلي روضي د زيارت کولو طريقه

فقهاوو د رسول الله صلی الله عليه وسلم د مبارکې روضي او د نورو مسجدونو د زيارت کولو دا آداب ټاکلي دي. وايي :څوک چې نبوي زيارت ته د تللو قصد وکړي، هغوی دي درود او سلام وايي. که له مکې مکرمي څخه مديني منورې ته ځي، کله چې د مدينې منورې فصيل تر سترګو شي



نو په رسول الله (صلی الله عليه وسلم) باندي درود او دا دعا وايي :

{اللهم هذا حرم بينک فاجعله وقاية لي من النار وامان من العذاب وسوء الحساب.}

(لويه خدايه! دا ستا د نبي حرم دی، د هغه په برکت ما د دوزخ له اور څخه وساتي، له عذاب او د محاسبې له سختي څخه مي وساتي.)

ښه داده چې مدينې منورې ته تر داخليدلو وړاندي، که موقع وه تر ننوتلو وروسته غسل وکړي، خوشبويي ووهي ،خپلي غوره جامي واغوندي او مدينې ته په عاجزي، ارامتيا او وقار سره داخل شي. که ځای او موقع وه، نو د رسول الله صلی الله عليه وسلم له منبر سره دي دوه رکعته لمونځ وکړي . د لمانځه لپاره دي داسي ودريږي چې د منبر ستنې د ښې اوږې په برابر وي. رسول الله صلی الله عليه وسلم به هلته دريده. دا ځای د مبارک قبر او منبر تر منځ دی.(کنه هر ځای چې ځای پيدا شو هلته دي دوه رکعته د شکراني لمونځ وکړي.) بيا دي الله تعالی ته د ور رسيدلو د توفيق د شکر سجده وکړي. څه چې يي زړه غواړي هغسي دعا دي وکړي. بيا دي د رسول الله صلی الله عليه وسلم د قبر لور ته لاړ شي. د رسول الله صلی الله عليه وسلم د سر لور ته، مخ دي قبلي ته کړي ودي دريږي. قبر ته دي د دري څلور لاسه ورنژدې شي، وړاندي دي نشي، د قبر په ديوال باندي دي لاس نه ږدي. داسي په ادب دي ودريږي لکه په لمانځه چې ولاړ وي، هلته

درسول الله صلی الله علیه وسلم مبارکه څهره دې په تصور کې راولي ، ګواکې هغه په خپل قبر کې بيده دی، دده په موجوديت پوهيږي او خبرې يې اوري، بيا دې ووايي :

{السلام علیک یا نبي الله ورحمة الله وبرکاته ، اشهدانک رسول الله فقد بلغت الرسالة واديت الامانة.}

(يعني السلام علیک یا نبي الله ورحمة الله وبرکاته ! زه په دې شاهدي وايم چې بيشکه ته دالله جل جلاله رسول يې تا درسالت حق پوره کړ دالله تعالی امانت دې ادا کړ.)

(يا الله ! درسول الله صلی الله علیه وسلم په قبر باندې مې دا وروستني حاضري مکوي. اې ذوالجلال والاکرام ذاته دبيا راتلو توفيق راکړې.)

ددې دعا په مهال دې نه اواز لوړوي او نه دې بيخي ورو وي. بيا دې وربـاندې دهغه چا چې دخپـل سلام درسيدلو غوښتنه يې کړې وي، سلام ووايي. ، ددې لپاره داسې ويل کيږي:

{السلام علیک یارسول الله من فلان ابن فلان یستشفع بک الي ربک فاشفع له ولجمیع المؤمنین.}

(اې رسول الله ! په تا باندې فلاني دفلاني زوی سلام وايه ، هغه له تا څخه دالله تعالی په دربار کې ستا شفاعت غواړي، نو دهغه او ټولو مؤمنانو شفاعت وکړې.)

بيا چې څيرې درسول الله صلی الله علیه وسلم څهره ده، هغه لورته چې شا دقبلې خوا ته وي ودريږي. کوم درود چې غواړي هغه دې ووايي. ديوه لاس په اندازه دې تير شي، دصديق اکبر رضی الله عنه، له سر سره دې ووايي :{السلام علیک یا خلیفة رسول الله ! السلام علیک یا صاحب رسول الله في الغار السلام علیک یا رفیقه في الاسفار .}

(اې درسول الله صلی الله علیه وسلم خلیفه! پر تا دې سلام وي، اې په غار کې درسول الله صلی الله علیه وسلم ملګري پر تا دې سلام وي ، په سفرونو کې درسول الله شريکه ،پر تا دې سلام وي.)

بيا دې له هغه ځايه وښوري، دعمر رضی الله عنه قبر ته دې ورسي او ودې وايي :

{السلام علیک یا امیرالمؤمنین ، السلام علیک یا مظهر الاسلام ، السلام علیک یا مکسر الاصنام ، جزاک الله عنا افضل الجزاء ورضي الله عنک.}

(اې اميرالمؤمنينه! پر تا دې سلام وي، اې داسلام ښکاره کوونکې پر تا دې سلام وي، اې بت ماتوونکي پر تا دې سلام وي، الله تعالی دې زموږ له لوري درته غوره اجر درکړي او الله دې درڅخه راضي وي.)

تر دې وروسته چې څرنګه غواړي هغسې دعا وکړئ چې څه غواړی هغه وغواړئ.

درسول الله (صلی الله علیه وسلم) دقبر دزيارت تر فراغت وروسته، دبقيع هديري لورته لاړ شي. په قبرونو حاضر شي، دلته دعباس، حسن بن علي، زين العابدين، دهغه زوی محمد باقر، دهغه زوی جعفر صادق، اميرالمؤمنين سيدنا عثمان (رضی الله عنهم) درسول الله زوی ابراهيم، امهات المؤمنين، درسول الله (صلی الله علیه وسلم) عمه، صفيه اونورو ډير صحابه وواو تابعينو (رضی الله عنهم) امام مالک اونافع (رحمهما الله) قبرونه دي.

مستحب داده چي دپنجشنبې په ورځ، داحد دشهيدانو خصوصاً دحمزه رضی الله عنه دمزار زيارت وشي. اوهلته ووايي: {سلام عليكم بما صبرتم فنعم عقبى الدار، سلام عليكم دارقوم مؤمنين وانا ان شاء الله بكم لاحقون.}

(اي دقبرونو اهله! په هغه صبر او استقامت چي تاسو يي څرګند ونه وکړه، پر تاسو دي سلام وي. آخرت څومره ښکلی ځای دی، دايمان لرونکو په دي هستوګنځي باندي دي سلام وي. موږ هم انشاء الله له تاسو سره ملګري کيدونکي يو.)

دلته دي اية الکرسي او داخلاص سورة (قل هو الله) ولولي. دشنبې په ورځ دقبا مسجد ته تلل مستحب دي.

ترڅو څوک په مدينه منوره کې وي، دا مستحب ده چي لمونځونه په نبوي مسجد کې وکړي. کله چي يي خپل هيواد ته دتللو اراده شي، په مسجد کې دوه رکعته دوداع (رخصت) لمونځ وکړي او چي څه مطلب لري دعا وکړي. بيا دي درسول الله (صلی الله علیه وسلم) قبرته ورشي،



دعا وکړي، الله دعا قبلوونکی دی.

(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ج ١ ص-١١٨٠)

(داتصور دي وکړي چي زه درسول الله صلی الله علیه وسلم په دربار کې حاضر يم او هغه په خپله زما خبري اوري او په پوره ادب او ټيټ غږ دصلوة او سلام ډالۍ ورته وړاندي کړي. دشفاعت غوښتنه وکړي. دصلوة او سلام صيغي اوږدي هم شته اولنډې هم، دکوموچي يي خوښي وي هغه دي وايي، خو دعامو خلکو لپاره په لنډه توګه سلام ويل غوره دي:

الصلوة والسلام عليک يارسول الله.

(ای دالله رسوله! پر تادي درود او سلام وي.)

الصلوة والسلام عليک يا حبيب الله.

(ای دالله حبيبه! پر تا دي درود او سلام وي.)

الصلوة والسلام يا خير خلق الله.

(ای دالله په مخلوق کې تر ټولو غوره، پر تادې سلام وي.)

السلام عليک ايها النبي ورحمة الله وبرکاته.

(ای دالله نبي پر تادې سلام او دالله رحمت او برکت وي.)

که دچا شوق وي چي په اوږدو جملو کې سلام ووايي، نو دحج او زيارت په هکله ليکل شوي کتابونه دي وګوري. په مدينه منوره کې دهستوګنې په مهال، هره شيبه غنيمت وګڼل شي. څومره کيدلای شي، طاعت او عبادت وکړل شي. هر لمونځ په جماعت سره په نبوي مسجد کې ادا کړای شي. هڅه وشي په رياض الجنة يا هغې برخه کې لمونځ وکړل شي چي درسول

الله (صلی الله علیه وسلم) په زمانه کې مسجد ؤ، درود شریف په جاري
ډول وویل شي. درسول الله (صلی الله علیه وسلم) مبارکې روضې ته
ډیر، ډیر ورشي او سلام ورته وویل شي. ځکه بیا همدا
نیکمرغي نه ترلاسه کیږي. ډیر وخت په نبوي مسجد کې
تیرکړل شي. که ډیرې ګڼې ګوڼې له امله په مواجهه شریف
کې سکون نه وي او په ارامي سره دصلوة او سلام ویلو او د
دعا موقع نه موندله کیدله، بیا له تجربې سره سم په دې
وختونو کې موقع وي.

۱- دماخستن تر لمانځه یو ساعت وروسته.

۲- ترسهار نژدې یو نیم ساعت وروسته.

۳- دماسپښین تر لمانځه یو ساعت وروسته.

که په مواجهه شریف کې، د درود او سلام ویلو موقع نه و
، نو په نبوي مسجد کې چې هرځای اسانه وي، هلته دې درود
او سلام وویل شي.

په مدینه منوره کې دهستوګنې په مهال، ترلمانځه وروسته
کوشش وشي، د درود او سلام هغه ځلوېښت صیغې چې په
مبارکو حدیثونو کې راغلي دي، یوځل وویل شي. انشاء الله ډیرې
ګټې به یې محسوسې شي. یا د لمانځه درود او سلام وویل شي.
(له تاسو ځخه هیله ده کله چې په پاکه روضه کې په رسول الله (صلی الله
علیه وسلم) له خپل لوري یا د دوستانو له خوا، درود او سلام وایاست، نو
زموږ ګنهګارانو درود او سلام هم ورسوئ. ځو ک چې زموږ درود او
سلام زموږ یادارته ورسوي، الله تعالی دې ورته د خیر بدله ورکړي
آمین. محمد رفعت قاسمي، مترجم او مصحح.)



## دیاد ساتلو وړ خبرې

دسپیځلي روضې (مقصوده شریفي) اوږد والی له شمال
ځخه د جنوب لورته (۱٦) متره، نژدې (۵۲) فوټه او سوریې
له ختیز ځخه لویدیز ته (۱۵) متره نژدې (۴۹) فوټه ده. ځلورو
ګوښو ته یې د مرمر ډبرو ستري، ستري ستنې دي چې
لوړوالي یې له چت سره برابر دی.

په ۹۸۰ هـ کال سلطان سلیم (ثاني) په دې سپیځلي روضې
یوه ګنبده ودانه کړه. هغه یې په رنګه ډبرو ښکلې کړه او د زرو
په جړاو یې ښکلا ورته زیاته کړه. ګنبده یې زرغونه رنګ
کړه، هغه پخوا سپین رنګې وه. له هم هغې ورځې ځخه
درسول الله صلی الله علیه وسلم مینه والو، هغه د خضراء
ګنبدې په نوم یاده کړله.

دلته یوه خبره په یاد ولرئ چې، درسول الله (صلی الله علیه وسلم) له
مبارک مزار سره، درې جالي دی او درې واړه سورې دي. عام
خلک بلکې ډیر عرب، داسې غلط پوهیدلي دي چې، لومړی
جالی درسول الله (صلی الله علیه وسلم)، دوهمه دابوبکر (رضی الله عنه) او
دریمه دعمر (رضی الله عنه) له ارام ځای سره دي. خو داسې نه ده،
بلکې دمنځنۍ په برابر، درې واړه قبرونه دي. په منځنۍ
جالۍ کې یو سورۍ دی چې، هغه درسول الله (صلی الله علیه وسلم) د مخ
مبارک سره دی. تر دې سوري لږ بیرته، درسول الله (صلی الله علیه وسلم)
مبارکه سینه ده چې، هلته دابوبکر (رضی الله عنه) سر دی. دلته هم
یو ګول ډوله سورۍ دی چې هلته د ابوبکر (رضی الله عنه) سر دی.

دابوبکر(رضی الله عنه) لـه سيني سـره، دعمـر (رضی الله عنه) سـر دی. دهغه له سر سره هم يو سوری دی. ګواکې لـه منځنـۍ جالـۍ سره د دريو وارو ارام ځايونه دي.

کله چي له منځنۍ جالۍ سره ودريږئ ، دجالۍ په منځ کې کيڼ لاس ته يو ګول سوری دی ، داد رسول الله (صلی الله عليه وسلم) له مبارک مخ سره دی. لـه دې سره يوه بنده دروازه ده ، پـه هغې پسي ښې لاس تـه يو ګول سوری دی. داد عمر (رضی الله عنه) لـه ځهرې سره برابر دی. (محمدرفعت قاسمي)

ooooooooooo

۱– دلمانځـه پـه مهـال ، پـه مسـجد حـرام کـې پـه جماعـت لمونځ کول، خورا غوره عبادت دی چي ثـواب يـې لـه يـو لـک لمونځونو سره برابر دی.

۲– په نورو وختونو کې دحج اوعمرې دارکانو له ادا کولو سره ، سره دکعبې ډيرطواف کول غوره ذي.

۳– دځينو کسانو ذوق داوي چي ځيني تاريخي ځايونـه ووينـي. هغـوی بايـد پـه همدې ځايونو کې کوم داسي عمل ونکړي چي دشرک اوبدعت په جمله کې وشميرل شي.

اردو بيت :

پـه ژبه دجذب او مينې دعـــوې نورې دي
دپيغـــمبر داطـــاعت تقاضې نورې دي

دهغو ځايونو ښکلول، له هغوی سره ځان لـــګول، دخپـلو خيالي مقصدونو لپاره څه شی بندول ، رقعې اچول ، پيسې اېښودل چي ګواکې دا مقصد مي پـوره شي .دايـو هم شرعاً صحيح نه دي. ځکه زمونږ ګران پيغمبر(صلی الله عليه وسلم) چي هغـه رحمة للعـالمين او شـفيع المـذنبين دی، دلتـه يـې دداسي څـه کولو حکم کړی نه دی. او بيا دنبي (صلی الله عليه وسلم) رښتونو مينـه والو صحابه وو، سترو اولياوو داسي کړي نه دي. نـو څوک دشرک کوم عمل ته دتوحيد نوم ورکولای نشي. په کوم بدعت باندې هسي دتش په نوم مينې نښه نه لګوي او نـه هغـه سنت ورباندې ترسره کيږي چي درښتونې محبت غوښتنه ده، ترڅو په توحيد او سنت کلک شي او لـه شرک او بـدعت څخـه ځان وژغوري.

# په نبوي مسجد کې اوه ځانګړې ستنې

## حنانه ستنې

دا له محراب سره نژدې ده. رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به له دې ستنې سره ودریده او خطبه به یي لوستله. دلته دهغې خرما دونې تنه خښه ده. کله چي له لرګیو څخه منبر جوړ شو، هغې د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په فراق کې د ماشومانو په څیر ژړل.

## دعائشې (رضی الله عنها) ستنې

یو ځل رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وویل :

{زما په مسجد کې یو داسي ځای دی چي که خلکو ته هلته دلمونځ کولو دفضیلت په هکله معلومات وای، نو وریاندې به یي سره پچه اچوله.} (طبراني)

دا ځای عایشي (رضی الله عنها) وښود، دعایشې (رضی الله عن[ها]) ستنې همدلته جوړه شوه.

## دابو البابه رضي الله عنه ستنې

له یوه صحابي، ابولبابه (رضی الله عنه) څخه یوه ګناه شوي و[ه]. هغه دلته په ولاړه ستنې پسي ځان په دې نیت وتاړه چي، تر څ[و] مي الله جل جلاله ګناه راته ونه بخښي، زه به تر هغه دلته بندي یم. داسي وخت راغی چي رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یي دهغ[ه] ګناه دبخښلو خبره واوروله. اوس هلته یوه ستنه جوړه شوې ده، ورته دابولبابه (رضی الله عنه) ستن[ې] ... [و]یل کیږي.



## دسریر ستنې

په دې ځای کې به رسول الله (صلی الله علیه وسلم) اعتکاف کاوو، د شپې به یي همدلته خپله بستره غوړوله.

## دحرس ستنې

دلته به علی (رضی الله عنه) ډیر وخت لمونځ کاوو، دلته به کښیناست او د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ساتنه به یي کوله.

دا دعلي (رضی الله عنه) دستنې په نوم هم یادیږي.

## دوفود ستنې

دلته به رسول الله (صلی الله علیه وسلم) له بهر څخه له راغلو وفدونو سره لیدل کتل کول.

## دتهجد ستنې

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به دلته دتهجد لمونځ کاوو.

دا ټولې ستنې دمسجد په هغه برخه کې دي کوم چي د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د وخت مسجد دی. له دې ستنو سره دعا او استغفار ویل او که موقع وموندله شي او نوافل وکړل شي. دا خورا مبارک ځایونه دي.

..........

## اصحاب صفه

صفه، چتري او سيوري لرونکي ځای ته ويل کيږي
دپخوانۍ نبوي مسجد شمال ختيځ لورته، له مسجد سر
لګيدلي، يوه چوتره وه. دا ځای اوس دباب جبرئيل(ع) پ
برخه کې، ددننه کيدلو په مهال، دمقصوده شريفې په شمال
کې دتهجد له محراب سره نژدې، دوه فوټه لوړ په کټاره کې
ده. پراخوالی يي ۴۰×۴۰ فوټه ده.

له دې ځای سره خدمت کوونکي کښيني. دلته خلک
دقرآن کريم په تلاوت لګيا وي. که تاسي دلته کښينئ او
تلاوت کوئ، په سختۍ سره به ځای پيدا کړئ.

دلته به هغه مسلمانان اوسيدل چي، هغوی به کوراو
ميرمن او اولاد نه درلودل. دې خلکو ته يې اهل صف
(دچوترې هستوګن) ويل. له همدې امله يې دا ځای دصف
په نوم ونوماوو.



دې خلکو به له رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ښخه ديني زده کړه
کوله. کله، کله به د اسلام دتبليغ لپاره نورو ځايونو ته تلل.
که څه هم د ټولو صحابه وو ژوند خورا ساده وو، خو د اهل
صفه دخلکو ژوند نور هم په فقر، سادګۍ او له دنيايي شيانو
ښخه لرې تيريده. دا خلک شپه او ورځ د نفس دتزکيې، د
کتاب او حکمت دحصول او له مصطفوي فيض ښخه ترلاسه
کولو لپاره، درسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې
حاضر وو. نه يې سودا ګري درلوده او نه هم زراعت. هغوی
خپلې سترګې درسول الله صلى الله عليه وسلم ديدار، غوږونه
دهغه صلى الله عليه وسلم کلماتو، جسم او روح دهغه
دصحبت او مجلس لپاره وقف کړي وو.
هغوی ددين له شتمنې ښخه پوره وو، خو ددنيا په ژوند
کې يې دفقر او بې وزلې حال داؤ چي ابوهريره رضى الله عنه
وايي:
{ما او ياتنه اصحاب صفه وليدل چي ښادر به يې نه درلود،
يوازې لنګ به يې لاره يا يوازې يوه کمبله. ښادر به يې په
غاړه داسي تاړه چي ترپندو، دبعضو خو دځنګانه تر سترګيو
رسيده او په لاس به يې داسي نيولې و چي عورت يې ښکاره
نشي. (بخاري شريف ج ۱ ص ۶۳)

*************

